د سيف الدين لودين كتابتون

كتاب پر ليسي شمېره


# دشاعرانو تذکره

## دکابل، لوګر، پروان، غزنی او وردګو شاعران او لیکوالان


احمد فرید فروزی

# دشاعرانو تذکره

دکابل،لوگر، پروان، غزنی او وردگو شاعران او لیکوالان

احمد فرید فروزی

گرد آورنده: اسدالله (وحیدي)

مسؤل تایپ و ویرایش: صفی الله

مسؤل پروژه : احمد فرید فروزی




نام کتاب: د شاعرانو تذکره

گردآورنده: اسدالله ( وحیدي)

مسؤل تایپ و ویرایش: صفی الله

مسؤل پروژه: احمد فرید فروزی

تیراژ: ۱۰۰۰ جلد

تاریخ چاپ: زمستان ۱۳۸۵

محل چاپ: مطبعه حبیب الله حسیب

# سریزه

شاعران خو شاګردان د ښکلی رب دي

په اویایمه لسیزه کې د شاعرانو ګڼ شمېر شعري تذکرې چاپ شوې لکه په څله کې ګلابونه، په للمه اوري بارانونه، ستا به خوښه شي که نه، دخوستیو ژړېیو نارې دي اوڅونورې.
دشاعرانو دې تذکرو په هیواد کې یو ادبي خوځښت را منځ ته کړ، نوي شاعران پیدا شول، اوهغه شاعران چې په تذکروکې یې شعرونه چاپ شوي وو نور هم وهڅول شول چې دشعر په ډګر کې تر پخوا ښې او لاړیاتې پنځونې وکړي .
چې له دې ډلې کولای شوو د ومان نیازي، اجمل اند ، عبدالاحمد محمدیار ،جلال خپلواک اونورو ته نغوته وکړو، چې هر یوه یې بیا خپل شعري کتابونه چاپ کړل او دپښتو په ادبي ډګر کې یې خورا ښې او ارزښتناکې زیاتونې وکړې .
که څه هم کېدای شي دا خبره بشپړه په تول تللې نه وي چې ګواکې یاد شوي کسان تذکرو تر دې بریده پورې را ورسول خو دتذکرو اغېزه هم له پامه نه شو غورځولای.
خو ددې شاعرانو ډېر بیا په اتیایمه لمریځه لسیزه کې د ژورنالیزم ښکار شول او ادبي پنځونې ترې پاتې شوې .
په دې وروستیو کلونو کې بیا کلنۍ مشاعرې او په یوشمېر ولایتونوکې ادبي ناستې ډېرې شوې او دې کار هم پخپل وار دادب په غوړېدا او خپروای کې بشپړه ونډه او دنورو نویو او تکړه شاعرانو په راټوکولو کې یې خپله اغېزه درلوده .
اوس اوس په داسې ولایتونو کې چې هلته مخکې تر دې کله هم ادبي غونډې نه وې شوې هره اونۍ او پنځلس ورځې وروسته ادبي غونډې جوړېږي چې دا د خوښۍ خبره ده.
چې خبره بلې خواته لاړه نه شي راځو دشاعرانو دې تذکرې ته چې د مدني ټولنې له خوا خپرېږي

په دې تذکره کې د څلورو ولایتونوشاعرانو دشعرونوبېلګې او لنډ ژوندلیکونه راټول شوي دي چې له دې ډلې څخه ډېری يې داسې دي چې يا ځوان شاعران دي او یاهم داسې کسان دي چې شعرونه او يا مقالې يې په مطبوعاتو کې نه دي چاپ شوي.

دا به ومنو چې په دې کتاب کې ټول داسې شعرونه نه دي چې ډېر به ښکلي وي کېدای شي کمزوري شعرونه هم پکې وي او لامل يې هم ښکاره دی چې دا کسان يا نوي شاعران شوي او يا يې هم په ادبي غونډوکې ډېر ګډون نه دی کړی.
موږ په دې تذکره باندې دتذکره لیکلو دارونو له مخې بحث ته وخت نه لرو او نه به دومره اړین وي چې سړی يې دلیکلوپه ټولو تخنیکي او اوصولي لارو چارو باندې خبرې وکړي خو دا چې دداسې ولایتونو دشاعروانو تذکره چې تر دې پخوا پکې داسې ګام نه و اخیستل شوی پخپل ځای دزيات ارزښت وړ دی .
دلته دیوې خبرې یادول اړین بولم او هغه دا چې شعري غونډې او ادبي ناستې دیوه شاعر لپاره ځانګړی ښونځی دی او موږ ډېر ستر شاعران لرو چې پخپله همدا اقرار کوي چې ادبي ناستو او غونډو تر دې ځایه پورې را رسولي دي .
که ېبرته خپلې خبرې ته راشو نودښه او کمزوري شعر پېژندل ډېر ستونزمن ځکه دي چې شعر د لوستونکي له حالت سره تړلی دی لکه زه اوس مایوسه یم هغه شعرونه چې مایوسي پکې نه وي ماته خوند نه راکوي او يا اپوټه نن زه په یوه داسې حالت کې یم چې زما هیلې او امېدونه پوره شوي اوس که ماته څوک داسې شعر چې مایوسي پکې وي وواييې کېدای شي هیڅ خوند را نه کړي.
دا مې تر دې پورې وکړه چې ددې کتاب شعرونه د بیلابېلو شاعران او دهمدې شاعرانو د بیلابېلو حالتونو محصول دی نو داسې ویل به ځکه يو څه ستونزمن وي چې يا سړی ټول ښه بولي او يا يې هم بد.
او که له دې ټولو څخه راتېر شو نو په دې کتاب کې دخپل وخت يو تصویر نغښتی دی چې دا هم په خپل ځای ډېرارزښتمن دی.

درنښت
نذیر احمدنذیر

# فهرست:





# انجینر قدرت الله (پټهان)



انجینر قدرت الله «پټهان» د انجینر ورښمین زوی د وردګو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د پټانخیلو په کلي کې په ۱۳۲۱ هـ ل کال کې زېږېدلی یم چې فعلاً هم په همدغه کلي کې اوسېږم.
په ۱۳۸۰ هـ ل کال کې د شنیزد تکیې (خالدبن ولید رض) له عالي لیسې څخه فارغ شوم او فعلاً د کابل د پولیتخنیک پوهنتون د ساختماني څانګې د پنځم ټولګي محصل یم. د شاعرۍ سره ډېره مینه لرم او تقریباً دوه کاله کېږي چې شعرونه لیکم چې تراوسه مې د (۸۰) په شاوخوا کې مختلف (عشقي، تصوفي، حماسي) شعرونه لیکلي چې سندرې هم په دې ادبي

لمنه کې رانغاړم. چې ځنې سندرې مې افغاني سندرغاړو ته هم ورکړې تر څو په خواږه اواز سره اوریدونکي خوشاله کړي.
اوس مهال کوم چاپ شوی کتاب نه لرم خو په راتلونکي کې که شرایط مساعد شول او ژوند راسره ملګرتیا وکړه د چاپ کولو هوډ يې لرم.

د شعر بېلګه:

رباعي

تورې سترګې مه ګرځه، د زړونو ازار مه اخله
یاره کبرجنه د دردونو ازار مه اخله
مه ګرځه د ګوتو په سرو د ښتنو کلي کې
سوی مې زړګی دی د آهونو ازار مه اخله
زه دې چې په زړه باندې ويشتلی یم نور مه وله
بار یم په غمونو د غمونه ازار مه اخله
دا د ملنګی جامې مې دي
بس دئ دومره ظلم د ظلمونو ازار مه اخله
وګوره چې اوښکو مې د مخ رنګ بدل کړی دی
سوی په غرمو یم د یخونو ازار مه اخله
خدایږو نصیحت مې ستا د خولې خندا لاډېره کړه
ولې په زړه سخته د عذرونو ازار مه اخله
نه لري احساس که (پتهان) سل ځل درته ووايي
چپ راځخه ځه د پرهرونو ازار مه اخله

بې وفا یار

دا چې په ما ظلمونه کېږي دا دیار دلاسه
چې لاس تړلي په ځنځیر یم د اغیار دلاسه



تا چې د ما سره وعدې او قسمونه کول
دغه چې پروت یم په زندان ستا د انکار دلاسه
ستا سپینې خولې په خندا تېر وتم دوکه شومه زه
دا چې تور شوی مې سپین رنګ د انتظار دلاسه
دا دغماز په تهمتونو تېر وتلی یې ته
ګرېوان ته سر کړه د دومره ظلم د ګفتار دلاسه
پټهان خو هېڅ د یارۍ خوا ته ورکتلي نه وو
دا چې شیدا شو دا دستا د خپل اقرار دلاسه

# اسد الله (وحيدي)



نوم مې اسدالله او وحيدي تخلص کوم د جکتورن نصرالله زوی يم، ۱۳۶۵ هجري لمريز کال کې د وردګو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ د تيمورخېلو کلي په يوه متوسطه کورنۍ کې زېږېدلی يم.

په ۱۳۸۲ هجري لمريز کال کې د سيدآباد د عالي ليسې څخه فارغ شوی يم او په همدې کال د کانکور په آزموينه کې د کابل پوهنتون د ټولنيزو علومو پوهنځی ته بريالی شوم، خو ډېر ژر د خپلو سپېڅلو احساساتو، حقيقت ويلو او پښتونولۍ په بدل کې د مرګ تر پولو ورسېدم، دا وخت مې د ژوند تر ټولو سختې ورځې وې، خو دا دخپل دين او پښتونولۍ لپاره په خپل ژوند کې يوه قرباني ګڼم او پرې وياړم، دې ته اړ شوم چې په لومړي کال دا پوهنځی پرېږدم او په دې ډول مې تحصيلي دوره د يو کال ځنډ سره مخ شوه.

یو کال وروسته مې بیا د کانکور په آزموینه کې ګډون وکړ له نیکه مرغه دا ځل د خپلې خوښې پوهنځی ادبیاتو ته بریالی شوم او اوس د همدې پوهنځی د پښتو څانګې د دریم کال محصل یم.
له هغه وخته چې مې د ژوند لومړني کلونه را یاد یږي یو ډول درد مې ملګری دی چې په علت یې زه هم نه پوهیږم، خوږ درد دی عجیبه ده تکلیفونه دي خو له تکلیف نه یې خوند اخلم ښایي همدا درد یې علت وي چې لومړني لیکل مې په شعر پیل کړ. تر اوسه پورې مې د ۱۵۰ په شاوخوا کې شعرونه لیکلي او همدا اوس اوس لنډې کیسې هم لیکم او هیله لرم چې په راتلونکي کې خپل ژبې او ادب ته د لاډیر خدمت جوګه شوم.

د کلام بیلګې:

غزل

شراب یې نه خورم د جامونو مې کړنګار خوښیږي
په خدای له وصله مې زر ځله انتظار خوښیږي
زه مې په خپله تفکر ته په کې څه لټوم
زما په سترګو کې اقرار په خوله انکار خوښیږي
زه خو یې یو د ځان لپاره خدای نه نه غواړمه
زما د خدای لپاره جوړ د ښکلو ښار خوښیږي
داسې ښکاریږي په تقدیر کې هم همدا لیکلي
زما ژوندون پاس په اغزو مرګی په دار خوښیږي

غزل

دا زحمتونه به مې یو وخت خدای په کار راولي
د ستا د پلار ژرنده کې خدای به زما وار راولي
زما رښتیاوې به څرګندې شي ستا لاپې به هم

خدای خو د ژر له اوره ډکه چېرته لار راولي
زه مې دې بدنصيب ته بې له صبره هېڅ نه لرم
سم دم اقرار وه خدای یې ژبه په انکار راولي
دغې ظالم زمان داسې قسم خوړلی
چې به د کار سرونه خامخا په دار راولي

مانۍ

دا څومره ښکلې او دا څومره قوي
دا په دې څومره هنر
او له پولادو څخه
دا په یوه لحظه کې
او خاص د تا لپاره
ستا انجینرو سترګو
زما د زړه دنیا کې
یوه مانۍ جوړه کړه

د شاعر او لیکوال آثار:
د شعر یوه کوچنۍ ټولګه چاپ ته اماده لرم خو لا مې چاپ کړې نه ده .

# ثناؤالله (فدا)




زه ثناؤالله ((فدا)) د محمد آصف مجاب زوی د وردگو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د حسن خیلو په کلي کې په ۱۳۲۵ هـ ل کال کې زیږېدلی یم.
لومړنۍ زده کړې مې ذ تنگي په عثمانیه کې او منځنۍ زده کړې مې د تنگي د امام ابو حنیفه رح په عالي لیسه کې سرته رسولي دي.

د شعر بېلگه:

خدای خبر چې دا به څه ؤ

د بلبلانو شورماشور ؤ — د گلشن په هر یوه لور ؤ
د خزان کیږدۍ وه ورانه — د مالیار باغ هم سمسورؤ
د نرگس د ناز خندا وه — یوه بل رنگه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

یوه ښکلې شان نغمه وه — د نسیم د باد وږمه وه
هرې خوا نه به شوه پورته — د ساقي لاس کې پیاله وه
د موسی ید بیضاء وه — یوه بل رنگه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

په آسمان کې به برېښنا شوه — د باران به اورېدا شوه
هرې خوا نه سیل روان ؤ — د سیندونو به شنها شوه
د جنت غوندې هوا وه — یوه بل رنگه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

ماوې بیا به سور انگار وي — د توپونو گړزهار وي
د ویر چغه به خوره وي — او دجنگ به تور بازار وي
ماوې بیا چېرته غوغا وه — یوه بل رنگه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

زه دخپلو باباگانو | د اتلو قهرمانو
تېره توره راواخلم | د میوند د زمریانو
خو نه جنګ او نه چغا وه | یوه بل رنګه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

زه هم ووتم په سیل | دې تېپوس ته مې ومیل
خدایه دا به څه حالت وي | هم نهار زیبا هم لیل
د سپرلي ګډه نڅا وه | یوه بل رنګه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

ؤ پرواز د بوراګانو | پاس آسمان کې هم د زاڼو
خوشحالي وه او مستي وه | هم صحرا کې د ګلانو
سپېرو دښتو کې رڼا وه | یوه بل رنګه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

غرو لمنې تکې شنې وې | د غاټولو پرې مېلې وې
سیاهان ټول سیاحت کې | هم جاري ښکلې چینې وې
د طبیعت یوه ښکلا وه | یوه بل رنګه دنیا وه

خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

و شور روږ د آبشارونو | رنګ په رنګ په آوازونو

د شپونکي د شپېلۍ غږته　　　　غرڅنيان په اتڼو نو
يوه زړه وړونکې تماشا وه　　　　يوه بل رنګه دنيا وه
خدای خبر چې دا به څه ؤ
خو زه هېڅ نه پوهېدلم
هېڅ خبر نه وم له حاله

**************

د شعر او نثر ليکلو سره مې له وړوکوالي مينه او ذوق ؤ د شعر ترڅنګ نثر هم ليکم او د شعرونو شمېر مې د ۸۴ څخه تر ۱۰۰ پورې، د لنډو کېسو شمېر مې له ۱۹ څخه تر ۲۷ پورې رسيږي او ددې ترڅنګ د ګوتو په شمار ناول، طنز، رومان او داستانونه مې هم ليکلي او ليکم، نو غواړم چې د خپلو لنډو کيسو مجموعه چې د (تورې ورځ) په نامه او همدارنګه د شعرونو مجموعه د (سپين سحر) په نامه چاپ کړم، که خدای ج کول په دې وروستيو وختونو کې به انشاء الله له چاپ څخه را ووځي.

په درنښت

# حزب الله ( مظلومیار )




زما نوم حزب الله « مظلومیار » د شهید غلام نبی خان زوی د وردگو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د زرنی د کلي اوسیدونکی یم او په ۱۳۶۲ هـ ل کال کې په همدې کلي کې زېږېدلی یم. خپلې تعلیمي زده کړې مې له « اول » ټولګي تر شپږم ټولګي پورې د چک ولسوالۍ د لنګرد شکې په دارالایتام کې کړېدي او له هغه ټولګي وروسته د ځینې مشکلاتو له کبله پاکستان ته ولاړم او هلته مې د کوټې په ښار کې د شهید مولوي حبیب الرحمان په لیسه کې له اووم ټولګي نه تر نهم ټولګي پورې زده کړې وکړې، خو کله چې بیا په هېواد کې سوله راغله نو په ۱۳۸۴ هـ ل کال کې بېرته خپل هېواد ته راستون شوم او د شیخ آباد په عالي لیسه کې مې له لسم ټولګي څخه خپلو زده کړو ته دوام ورکړ چې اوس په یوولسم ټولګي کې زده کړې کوم.

د کلام بېلگې:

## د اشنا غم

د فراق لمبو تور کړی لکه سکور یم
هیڅ له تانه خفه نه یم که سیځلی دې په اور یم
تور ماښام ؤ په کوڅه دې تېرېدلم
هسې تاته مې ژړل ما ویل په کور یم
اشنا نوم دې په زبان اخستی نه شم
که دې یاد کړم بس د خلکو د پېغور یم
تصور مې ستا دحسن سره درومي
زه یې هسې ځغلولی په هر لور یم
د وفا غېږ مې ترلي زولنو کړه
ځکه تل د رقیبانو سره په شور یم
هر یو زخم مظلومیار په غزل وسو
زه د وینو په ډنډوکي هم نسکور یم

***

## غزل

له دنیا نه مې زړه تور دی
زړه مې سوی لکه سکور دی
خدایه چېرته به امان وي
بل قدم په قدم اور د ی
د وصال خبرې نشته
د بېلتون غم لور په لور دی
چې پیدا یم په ژړا یم
د یار غم مې په زړه خپور د ی
خندا نشته په ژوندون کې
ځکه خوښ زما خپل گور دی
په ژړا ټول وطن سور دی
که وردگ دی او که غور دی
ته چې خاندې خانده، خانده
ځکه زخم دې ټکور د ی

زه شاعرۍ او شعر سره زياته مينه لرم او تقريباً پنځوسو څخه زيات شعرونه مې ليکلي دي. ما په کوچنيوالي کې د شعر ليکلو سره زياته علاقه درلوده، خو بيا مې د شعر ليکل پرېښودل ځکه چې زه په هغه وخت کې په خپلو شعرونو باوري نه وم، خو وروسته مې بيا د نهم ټولګي څخه د شعر ليکلو ته شروع وکړه. کوم شعرونه چې مې ليکلي دي تراوسه پورې چاپ شوي نه دي، خو د «برنامه بيداري ملي» څخه هيله لرم چې زموږ د هېواد د ټولو شاعرانو شعرونه چاپ کړي.

زما د ځينو شعرونو عنوانونه دادي:

خطرناک سيل، غزل، د جانان ديدن، زلزله .....

# حبیب الرحمان (وردګ)




نوم مې حبیب الرحمان وردګ د ملا مؤمن خان زوی د وردګو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د حسن خیلو (تنګي) کلي اوسیدونکی چې په ۱۳۶۳ هـ ل کال کې د پاکستان صوبه سرحد په ضلع کوهاټ، تحصیل هنګو، اورکزیي ایجنسي د غلجو افغان مهاجرینو پنډ غالۍ په کمپ کې دې نړۍ ته سترګې غړولي دي. چې اوس د خوست په پوهنتون کې د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځی د دریم ټولګي محصل یم.

ټپلګه:

نن مې بیا د یار رایادې خاطرې دي  په ژړا مې ځکه دواړه سترګې سرې دي
هجر وسوم د آشنا وصال مې نشته  ژاړم ځکه د زړګي مراندې مې پرې دي

بېلتون شاه شو د کور کلي یاران د رومي مین نشته ترې خالي ټولې دېرې دي
غریبي ده بیکاري ځوانان مو نشته پردي ملک ته ځي ترې پاتې یې میرې دي
هجره سور اور دې په زړه راته بل کړی چې له خولې مې نفس ځي واړه ایرې دي
چې د مینې پر بڼ اور دی لړیدلی زما د زړه پر کور د غم وریځې خورې دي
قسمت هسې کړم جدا له خپل دلبره چې د هر رقیب پر ما خوار مسخرې دي
ګیله وکړمه له چا نه او و چاته د فاني هسک پیل کړي دا نخرې دي
دا کارونه د تقدیر دي بل څه نه دي چې مې ډېر عاشقان پرېښې بې اسرې دي
شعر یې مه بوله چې ما حبیب لیکلی له فراقه د زخمي بلبل نارې دي

که څه هم اوس پښتو ژبه د شعر په ځای علمي آثارو ته ډېره اړتیا لري خو شعر هم په ټولنیز پرمختګ کې ژوندی رول درلودلی شي نو له همدې امله د شعر سره د زیاتې مینې په وجه مې په ۱۳۸۰ هـ ل کال کې په شعر لیکلو پیل وکړ او تراوسه مې د ( ۱۵۰ څخه تر ۲۰۰ ) پورې شعرونه لیکلي، چې ډېری مې د «غبرګ» تر مؤقتي نامه لاندې راټول کړي، خو له بده مرغه په چاپ یې نه یم بریالی شوی او که بخت راسره یاري وکړه دا شعري ټولګه به چاپ او ورسره په څنګ کې بهٔ د علمي آثارو ژباړنه او د خپل توان سره سم به د علمي آثارو په لیکلو هم لاس پورې کوم. انشاء الله.

په مینه او مننه
حبیب وردګ ( ۱۳۸۵\۷\۲۲ )

د لنډې کیسې بېلګه:

ورک ؤ

د مازدیګر زیړی لمر په پریوتو ؤ، شفق هم خپلې زرینې وړانګې د غرو د هسکو څوکو څخه هغو تورو سیورو ته پاشلې چې لمر ترې پریوتی ؤ، د افق د تورې ترووږمې خړې پلوشې نژدې په خوریدو.

مسجد کې ناست وم تسبیح مې اړولې چې نابېره غبرګ رابانډې وشو غواړې دي څوک، تسبیح مې جیب کې واچولې د مسجد نه د وتو په لور روان شوم د ډېرې بېړې نه د

مسجد د وتو دعا هم را څخه هېره شوه، موزې مې په پښو کړې او په وارخطايي سره د مسجد د بيرونۍ د ښکته کېدو پايکې زياتې وي کله مې چې د پاسه په لومړي پايکه پښه کېښوده، دا چې زما شل انچه پايڅې او غټې موزې په پښو وې موزه او پايڅه مې په پايکه کې بند شول او لاندې راولويدم ، گونډې او څنګلې مې په ځمکه سخت ټپ وخوړ نژدې ؤ چې د مسجد سره ناست کسان راباندې راټول شي او راته ووايي چې څه کوې ليونی خو به نه وې؟ ژر راپورته شوم شاوخوا مې وکتل چې وړاندې يو ځوان ولاړ دی ورڅخه مې پوښتنه وکړه چې ستا په کار وم؟ راته يې وويل هو، تر څو مې چې د خيرت دی پوښتنه ترې کوله راته يې وويل: زيری مې در ته راوړی، ما ورته وويل زيری دې په ګل بدل وايه څه زيری دې راوړی؟ ده راته ويل چې تر څو د زيري تحفه را نه کړې نه يې درته وايم، هماغه ؤ چې د زيري د سر کليمې په دومره خوربو او زړه وړونکو الفاظو شروع کړ چې تا به ويل بله دنيا کې يم، هغه دا چې د هغه ښکلي بشر زيری مې درته راوړی چې تا به د هغه ښکلي او حسين تصوير د سترګو نه نه بايلو، ما وپېژندو چې په سفر تللی معشوق ښيي، خو ده ته مې وويل : ومې نه پېژندو د چاخبره «په خوله مې يو څه ويل په زړه کې مې ګوډې ماتولې» په دې خبره چې ما ونه پېژندو ځوان راڅخه رهي شو ، ما ورپسې کتل تر څو فنا شو. زه هم د کور خوا ته روان شوم په لاره وم چې موزو مې ښنګرکې وهلو، موزو ته مې وکتل چې د ښې پښه موزه مې په چپه پښه، د چپې پښې موزه مې په ښې پښه پښو کړې وه له ځانه سره مې وخندل چې ملامت نه وې چې د مسجد د پايکي نه راګوزار شوي او شکر مې وويست چې لږ ترورېمی غوندې وه چې خلکو او ځان زما چپه موزې ونه ليدې کنه نو شرمولای به يې وای، کورته لاړم نه دا مې ويل چې هرومرو به ددغه ښکلا د بشر کورته ځان رسوې ناوخته ؤ فقط د کوچنيانو دا غږونه مې تر غوږو کېدل چې ويل يې : «ځئ چې ځو کورو ته مرغۍ لاړې غارو ته» لږ وروسته په آسمان کې يو يو ستوری په ښکاريدو شو، وريځ هم غوټې، غوټې راغله، سپوږمۍ هم څوارلسم ؤ نری نسيم هم چليدو کله به توري غوټې وريځ د سپوږمۍ ښکلی مخ پټ کړ او پر ما باندې به يې توره سيوره راولويده، سخت بېرېدلم چې تر څو مې کوم وحشي ځناور ونه داړي کله چې ددې ښکلي او حسين بشر کلي ته نژدې شوم آسمان هماغه آسمان، ځمکه هماغه ځمکه ، غرونه هماغه غرونه خو هغه پخوا ښکلي نري چنارونه او تر هغه لاندې ښکلي ګودرونه وران، ويجاړ ؤ له ځانه سره مې وويل:چې د ښکلي بشر زړه



وړونکی حسن به هم داسې وي که څنګه ؟ په دې چورت او فکر کې وم چې وړاندې مې یوه دروازه تر سترګو شوه دومره زړه دروازه وه چې له لیرې نه په کې لوی لوی چولې لیدل کېده، د زنګ او ځنځیر پر ځای مې د ټیم یوه ځنګ وهلې پټاره سرېښ وه، ما هم لویه ډبره راواخېسته او دروازه مې پرې ټک ټک کړه ، یو کس دروازه خلاصه کړه ماهم وار د واره ترې وپوښتل چې ته فلانۍ یې؟ ده راته وویل : هو. کله مې چې ولیدل چې دده پخوانۍ ښکلا د زمانې ګردش خوړلې وه او زه یې ونه پېژندلم نو مې ورته وویل چې زه ملنګ یم خیر غواړم، یوه ټوټه سپوره ډوډۍ یې راوویسته، ډوډۍ مې ترې واخېسته ترې رهي شوم، په لاره روان وم له ځانه سره مې دا ویل : چې دا دنیا بې وفا ، ښکلا یې بې وفا ، ژوند یې بې وفا ، دا مې ومنله چې د هغه باوفا با بقا دنیا لپاره چې آخرت دی باید کار وکړم،. بېرته مسجد ته د تسبو په اړولو مې پیل وکړ.

# حزب الله ( مخلص )




نوم مې حزب الله (( مخلص )) د استاد حیات الله زوی، چې له نن څخه ( ۱۹ ) کاله وړاندې د وردګو ولایت د چک ولسوالۍ د مانکي په کلي کې زېږېدلی یم.

لومړنۍ زده کړې مې د امام ابوحنیفه رح په ښوونځۍ او وروسته مې خپلې زده کړې تر دولسم ټولګي پورې د شهادت په مدرسه کې ترسره کړېدې. په کال ۱۳۸۲ هـ ل کې د همدې مدرسې د فراغت څخه وروسته د کانکور د آزموینې په واسطه د کابل پوهنتون د شرعیاتو پوهنځی ته بریالی شوم چې اوس مهال د همدې پوهنځۍ د درېیم ټولګي محصل یم.

د کلام بېلګه:

د خیال سترې هوسۍ

لکه گل چې په سپرلي کې بارانو نه الهام اخلي
زړه مې داسې گرانه یاره ستا لیدو نه الهام اخلي
ستا د لاسو نشانونه گرځومه ځکه هر وخت
یعقوب غوندې مې سترگې له جامو نه الهام اخلي
گرځېږم چې تنها تورو تیارو کې په صحرا وو
د خیال سترې هوسۍ مې دنگو غرو نه الهام اخلي
د کوثر ساقي ته کړمه تل سجدې د داد په طمع
صفا او ملنگی هیلې مې توبو نه الهام اخلي
ستا د مینې میکده کې زه رنځور (مخلص) خمار یم
هر عنوان مې د غزلو پیمانو نه الهام اخلي

شعرونه مې په ابتدایي (ساده) مرحله کې دي چې د سلو شاوخوا ته رسیږي، په دې کې آزاد شعرونه ، نظمونه هم شته چې زیاتره برخه یې غزل جوړوي. په راتلونکې کې هیله لرم چې د شعر لړۍ مې لا پراخه کړم.

# روح الله (ساحل)




زه روح الله «ساحل» د ډاکټر سعادت «نجیب» زوی په ۱۳۲۸ هـ ل کال کې د میدان وردګو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د سالارو په کلي کې زېږېدلی یم. اوس مهال د تکیې د خالدبن ولید رض د عالي لیسې د دولسم ټولګي زده کوونکی یم.
له کوچنیوالي راهیسې مې دشعر سره مینه لرله چې په ۱۲ کلنۍ کې مې په شعر لیکلو پیل وکړ. له شعر پرته له ناول او لنډې کیسې سره هم مینه لرم خو تر اوسه مې نه دي لیکلي. د شعرونه شمېر (۲۰) شاوخوا ته رسېږي، چې زیات یې غزل دي خو لاد کتاب په بڼه نه دي چاپ شوي په راتلونکي کې هیله لرم چې د کتاب په بڼه یې چاپ کړم.

د کلام بېلګه:

خيالونه مې د هيلو له بوستانه سره ځي
ژوند مې له بې منزله يو کاروانه سره ځي
الفت مې د شعرونو له بيانه سره ځي
رقيب مې اوس همرازه له جانانه سره ځي
چې وار خطا نه کړې اميد ته کله شا نه کړې
دردونه ټول يکسانه له درمانه سره ځي
د هيلو شمع به کله رسي تر منزله
چې د دودونو له يو تونو توپانه سره ځي
نن بيا مې د ځان په ضد يو څو خبرې وکړې
قسمت مې له کړيو او زندانه سره ځي
د غازي زوی ته څوک غازي نه وايي ساحله!
کيسې دغيرتونو له ايمانه سره ځي

# ډاکټر عبدالحمید ( بهیج )



ډاکټر عبدالحمید « بهیج » د حاجي غلام حبیب زوی، کلی، ولسوالۍ، ولایت او هېواد مې همدا یو افغانستان دی.

هغه د چا خبره د زېږون کال په دې نه لیکم چې چا ته یې څه ګټه رسېږي، که بیا هم څوک یې کوم نجومي ته زما د پال کتو په موخه ښکاره کوي نو په پال ایمان نه لرم. نړۍ ته مې په داسې کورنۍ کې سترګې غړولي چې د سیمه اېزو دودونو او تربګنۍ له لاسه یوې بلې لرې پرتې پردۍ سیمې ته کډه شوې وه. د ژوند له لومړنۍ کریغې څخه مې چې کله خلک خبر شول د ټوپکو په ډزو یې بدرګه کړه ، په دې مانا چې په ژوندون کې مې تر هر څه د مخه د ټوپک غږ، چې د کرکې شعار دی اورېدلی دی. دا هغه مهال دی چې په نړۍ کې دوه سترو ځواکونو د افغانستان په خاوره یو بل ته ښکرونه تمبه کړي ؤ. سپیڅلې جګړه پیل شوه او د پلار ټټر مې د

جګړې په مورچل کې غلبېل غلبېل شو، زه چې په خبرو سم نه وم راغلی تر دومره اغېز لاندې راغلم چې دهغه درد شریکې اوس هم احساسوم. زموږ کورنۍ پاکستان ته مهاجره شوه هلته چې د نورو د هیلو او آرمانونو له پاره د پاکو او سپېڅلو ځوانانو د غوښو وریتولو بازارونه جوړ شوي وو. په همداسې یوه چاپېریال کې مې وده کوله، ددې انسان وژمه خلکو پندونه مې اورېدل او ....

لاد ښوونځۍ نه وم چې مجلې او اخبارونه مې لوستل او کله به مې چې د یوه انسان په لاس د بل هغه د وژنې، یرغملوونې او ځورونې خبر ولوست د شپې به خوب نه راتله. له هماغه ماشومتوب څخه مې زړه له یوه ګونګ درد څخه خوږېده.

ښه مې په یاد دي چې کله مې په پېښور کې د افغانستان د یوه روڼ اندي او فلسفي انسان ډاکټر بهاالدین مجروح د ترور کېدو خبر ولوست دوه ورځې مې ډوډۍ ونه خوړه مګر په دې هم نه پوهېدم چې له مجروح سره زما څه دي، زه ورباندې ولې دومره دردېدلی یم.

ډېر شوخ وم او تل به مې له ماشومانه لوبو سره خپله لېوالتیا څرګندوله، مور مې چې ماته له آسمانه را نازله شوې فرشته ښکارېدله راڅخه په تنګ شوه او زما د شوخیو څخه یې د خپلو غوږونو د آراملو په موخه له کوره وشړلم، زه هم چې په کوڅه کې له همزولو شرمېدم چې ولې یې له کوره را شړلی یم، زموږ کور ته څېرمه ښوونځۍ ته ورغلم، سرښوونکی مې له شاملېدو سره مخالفت ښکاره کړ او دلیل یې دا وو چې ته کوچنی یې مګر د ډېر ټینګار په ترڅ کې یې په ښوونځي کې شامل کړم.

دا درېم ټولګی دی، کتاب لوستلی شم نو املا نه شم لیکلای، ښوونکي راڅخه پرله پسې پوښتنې کوي خو زه یې ځواب نه شم ویلای، هغه هم د توت یوه لمده لښته را اخلي او په لاسونو مې د ډېرو وهلو له لاسه پولۍ ودرېږي.

بېرته کورته راځم، ښه وږی شوی یم، مګر د مور زړه مې لانه دی سوړ شوی، ډوډۍ نه راکوي په کور کې د پرتې زړې خیمې په مړوي مې وهي، زه له ډېره درده خورا ډېرې چیغې وهم ګاونډیان را خبرېږي مګر زه لاهم وهل خورم. له دې پېښې څخه چې پلار خبرېږي هغه هم ما ملامتوي بیا هم وهل ټوکل زما په برخه له ازله لیکل شوي دي.

له هغه ماشومتوب څخه نه پوهېږم چې ولې د ټولو بد ایسم، ولې دنورو کورنیو د ماشومانو په څېر نه نازېدم، ښوونکې ماته په غصه دی، ګاونډی ما ته داړې چیچي، پلار مور ماته سوتي په لاس ولاړ دي.....

په ښوونځي کې د استاد خبرو ته غوږ نه ږدم ځکه د هغه له سولېدلو او کلیدي خبرو چې له اورېدو څخه یې زما غوږونه ستومانه شوي کرکه لرم، تل استاد ته وایم چې آیا په نړۍ کې داسې څوک شته چې یو بل ته د ترخې خبرې په ځای له مینې ډکه خبره وکړي، داسې انسانان هم شته چې د مینې په مذهب وي.

اوس نو د څلورم ټولګي زده کوونکی یم له وهلو ټکلو او ترټلو سره روږدی یم، دومره ډېر هم نه خوږېږم او د زیاتو کنځلو تر اورېدو وروسته دا پر له پسې تکرارېدونکی کار او دخپل برخلیک برخه بولم. له ښوونکي څخه پوښتنه کوم چې(( په نړۍ کې د مینې په نوم دین شته دي ؟)) ښوونکی د ځواب راکولو په ځای فوراً سرښوونکي ته ورځي او هغه مې په دې تور چې خدای مه کړه زما له اسلام سره مینه کمه شوې د سلو لښتو په وهلو محکوموي هغه هم د ټول ښوونځي په مخ کې.

اوس نو شپږم ټولګي ته رارسیدلی یم اوپه ښوونځی کې د یوه بې دینه او بې لارې زده کوونکي په توګه ښه نوم لرم. ټول زما له نامه کرکه لري ولې چې زه مینه غواړم او دمینې دین او دوی مینه نه پېژني او نه هم زما خبرې او هغه څه درک کولای شي چې زه یې په ګوګل کې د ځان سره ګرځوم ، وربانديې ژوندی یم او دخپلې روح غذا یې بولم. یوه ورځ د ناوړه لیک بنې ته جرم د پلار له اړخه سخت وهل کېږم، یوې تنها خونې ته په داسې حال کې ځم چې اودس مې هم کړی دی، لوی خدای ج چې باور لرم هغه دی چې یوازې مینه پېژني او له وهلو ټکلو څخه کرکه لري په لمانځه درېږم او تر لمانځه ادا کولو وروسته په هماغه ځای ویده کېږم، او یو ډېر حېرانونکی خوب وینم او له خوب څخه تر راوېښېدو وروسته ګورم چې کاملاً مې خط د یوه ښکلي خطاط په شان زده وي.

دا مهال په ښوونځي کې د کوچني خطاط په نوم لږ څه قدر پېداکوم خو چې کله بیا هم هغه د دوی په ګومان زړې ببولالې وغړوم نو د ټولو په زړونو کې راته اور بلېږي. اوس نو له هېواد څخه سرې لښکرې وتلې، د شوروي لاسپوڅی حکومت نسکور شوی او مجاهدین

بريالي شوي دي د پخوا په شان اخبارونه لولم، راډيوګانې اورم او چورتونه وهم، اوس نو له انسانيت او شرافت څخه داسې بربنډ تېري وينم چې هره ګړۍ له خدايه د مرګ غوښتنه کوم. کله ناکله د ځان وژنې هڅه کوم. خو خدای ج تر دم مهاله ژوندی ساتلی يم. له ډېره ګورمه ليکوالۍ ته پناه ور وړم، ليکل کوم او د کاغذ له سپين مخ سره خبرې، هغه مخ چې هر څه ورته وايم په ډېر ورين تندي يې منې او نه راته نه وايي، دردونه مې لږ لږ کمېږي ځکه کاغذ راته هغه لومړنی څوک ګرځي چې زما په خبرو پوهېږي او زما سره ملګرتيا کوي.

دا مهال کابل پوهنتون ته راغلی يم په لاره کې په خامه سرک د (۱۲) ساعته مزل څخه وروسته سخت ستومانه شوی يم، په دې کړه لاره کې هر کانې او هر بوټي راته ژړلي دي، سخت ژمی دی او واوره ورېږي، سختې سړوخې نيولی يم ځکه په تن باندې يوازې يو نری کميس لرم او د اغوستو له پاره کوم بل شی هم راسره نشته. د طالبانو د مهال د يوه وزير پوښتنه کوم هغه چې په کولتوري او فرهنګي چارو کې ځان ورته پنډت ښکاري، دروازه يې ور ډبوم خو د ساتندويانو له خوا يې سخت رټل کېږم، مګر څه وکړم له سړوخې او نابلدۍ څخه هېچېرې نه شم تلای، په سپينو سترګو شپه سبا کوم، سهار د وخته کابل پوهنتون ته پياده ځم، ځکه د لارې کرايه راسره نه شته، په پوهنتون کې سختې ناخوالې وينم داسې چې انځورول يې دهغه وير يو ځل بيا تازه کول بولم، په ټول پوهنتون کې مې داسې شنه ونه چې د طبيعت ښښه ده ونه ليده چې دمرميو له لاسه سورۍ سورۍ شوې نه وي، د ښځو د ښوونځيو يوه بوجۍ مې وميندله چې په تېر مهال کې د اسلام په نوم ورڅخه شلول شوي وو او دانسانانو داسې ټوکر ټوکر جسدونه چې ...

دا نو زه يم چې ژوندی يم، په دې کم يا زيات عمر کې مې يوه ورځ هم مينه ، او مينه او مينه نه ده ليدلې هغه څه چې زه يې خپل دين او مذهب بولم، له دې کبله مې يوازېتوب ډېر خوښېږي او هغه جبران خليل جبران خبره :

۱- تر څو د هغه کسانو مخونه ونه وينم چې ځانونه پلوري او په بيه يې تر ځان ارزانه توکونه رانيسي.

۲- تر څو هغه کبرجنې مېرمنې ونه وينم چې په سترګو او وروځوسره په خلکو ملنډې وهي، په شونډو زرموخېزه موسکاوې کوي، خو په زړونو کې يې له يوه هدف څخه زيات څه نه وي.

۳- تر څو د هغه کسانو مل نه شم چې دعلم خوبونه ويني او په هغه کې ځان تر وروستۍ پوړۍ رسيدلی بولي خو په وينه يې سترګې يوازې د حقيقت د سيوري د ليدلو توان لري خو دوی ګومان کوي چې د هغه بشپړ ګوهر يې ترلاسه کړی دی.
۴- ځکه چې د هغه زور ځواک کارونکي شخص له چلند څخه ستومانه شوی يم چې نرمښت يو ډول کمزورتيا ، جوړجاړی يو ډول ډار او لويي غوښتنه يو شان کبر بولي.
۵- ځکه د داسې شتمنو له ناستې پاستې ستړی شوی يم چې ګومان کوي لمر، سپوږمۍ او ستوري د دوی له نړۍ او زېرمتونونو څخه راخېژي.
۶- ځکه چې د داسې سياستوالو څخه زړه توری شوی يم چې د خلکو له هيلو سره لوبې کوي، د هغوی په مخ او سترګو کې زرينې دوړې جوړوي او په غوږونو کې يې د لغتونو سندرې بولي.
۷- ځکه دهغه کاهنانو څخه کرکه لرم چې پندونه او وعظونه کوي خو عمل ورباندې نه کوي او له خلکو څخه د هغه څه هيله لري چې له ځان څخه يې نه لري.
۸- ځکه د چا له لاس څخه مې څه نه دي اخيستي مګر دا چې بيه مې يې له زړه څخه ورکړې ده

۹- ځکه د تمدن او پرمختګ له هغه ورانيو او ګامونو څخه خوابدی او آزرده شوی يم چې دخلکو په سرونو يې بنستونو اېښودل شوي وي .
۱۰- ځکه يې په يوازېتوب کې ژوند ، روح، فکر، زړه او جسم وي.
۱۱- ځکه په يوازېتوب کې د لمر له رڼا ، د ګلونو د خوږو وږمو او د اوبو له شنهار څخه ګټه اخلم.
۱۲- دا چې د ځمکې د رازونو د پېژندلو او دخدای ج عرش ته د نژدې کېدلو په لټه کې يم.

- په ژوند کې څلور شيان راته ډېر ګران دي او ورباندې ايمان لرم :

۱- مينه چې زه ورته دخپل دين په سترګه ګورم.
۲- خپلواکي چې تر نن پورې يې په ليدو پسې رڼوند شوم.
۳- رېښتنولي او صداقت چې لاتراوسه مې په ډېرو کمو خلکو کې ليدلي او زه يې د خپل مذهب په توګه پېژنم.
۴-وفا چې ور څخه ارزښتناک او مهم شی نه شته .

- د ځمکې د مخ هېڅ رنګ مې نه خوښېږي ځکه له رنګ څخه کرکه لرم او رنګ ته دهغه څه په سترګه ګورم چې د حقيقت مخ پټوي.
- د ژوند ډېر وخت له کتاب سره تېروم، هغه څه چې تل راته رېښتيا وايي او تل راسره ملګرتيا کوي.
- په مسلمانو پوهانو کې د حضرت امام محمد غزالي (رح) ليکنې په ډېر مينه لولم ځکه هغه هم د مينې په مذهب دی او هر ځل يې چې ليکنې لولم د اوښکو په بيولو يې بدرګه کوم.
- د نړۍ په نورو ليکوالو کې مې جبران خليل جبران خوښ دی که څه هم له ځينو خبرو سره يې جوړ نه يم.
- په موسيقۍ کې يوازې د افغانستان د وتلي سندرغاړي ډاکټر صادق فطرت ناشنانس له سندرو سره مستېږم.
- له خوړو سره چندان مينه نه لرم که څه هم د جسم له پاره ډېر اړين دي مګر تر څو چې مې روح نه وي مړه شوي د جسم په اړه فکر نه کوم.
- هېڅکله مې د ښو جامو د لرلو هيله نه ده کړې، هېڅکله مې دښه کور له پاره خوبونه نه دي ليدلي او هېڅکله مې هم دموټر لرلو له پاره طالع نه دي کتلي.
- هېڅکله مې د ځان له پاره حتی يوه شېبه هم ژوند نه دی کړی بلکې تل راسره د نورو فکر دی.
- هېڅکله مې مينې ته چې زه يې خپل دين بولم له مادي پلوه نه دي کتلي، مينه مې له مادي څخه پورته داسې شی بللی چې د انځورولو له پاره يې په پرېکنده توګه کلمات نه شته دي.
- له خپل هېواد سره لېونۍ مينه لرم، خپله ژبه راته خورا ګرانه ده او خدای خبر چې په پردۍ ژبه به پوهېږم او که نه خو هېڅکله هم په هېواد کې دننه له چا سره په پردۍ ژبه نه يم ګړېدلی، که کله مجبور شم چې مقابل پلو زما په ژبه بوی هم نه وړي نو بيا

ورسره قصداً گوډه ماته انګریزي وایم ځکه له خپلې ژبې سره مې ژمنه کړې چې هېڅکله به یې نه هېروم او نه به هم نورو ته ورباندې ګرانښت ورکوم.

- د خپل زړه د براس له لیکلو سره ډېر خوښ وم ځکه کېداى شي یوه ورځ څوک ګټهٔ پورته کړي چې په دې لړ کې مې لا تر اوسه (۱۴) کتابونه لیکلي چې نومونه به یې د دې ژوندلیک د آثارو په برخه کې یاد کړم.

په پاى کې باید یاده کړم چې:

د نړۍ یو تر ټولو ناوړه انسان یم، هر چېرته د خلکو راڅخه کرکه کېږي، د ټولو بدایسم، ملا له ما څخه ناکرار دى، مور پلار په بل ځاى کې سرټکوي، ښوونکي او ملګري راڅخه بېل ژاړي، کلیوال او عام وګړي راپورې خاندي یوازې کوچني ماشومان دي چې له ماسره جوړ دي کله چې په لاره تېرېږم له دوى سره په سترګو مه شئ او روغبړ باندې مې هره ورځ ډېر وخت تېرېږي، زه له دوى سره جوړ یم او دوى له ماسره مینه لري.

په ټوله نړۍ کې د کرکې او توپیر د ورکېدو په هیله

۲۰۰۶/۱۰/۲۵

د لیکوال آثار:

زما د آثارو شمېر لکه چې مخکې مې ورته نغوته وکړه تر دم ګړۍ پورې (۱۴) ته رسېږي چې زه یې یوازې د هغو نومونه یادوم چې د چاپ په ګاڼه پسولل شوي دي:

۱- بهیج طبي سیند ( Bahij's Medical Dictionary ): په (۲۰۰۶) کال کې په (۲۰۰۰) ټوکه کې خپور شوى سیند دى چې د متن د پاڼو شمېر یې څه دپاسه (۱۲۰۰) ته رسېږي.

۲- بهیج سیاسي قاموس ( Bahij's Political Dictionary ): په ۱۳۸۴ هجري لمریز کال کې په (۱۰۰۰) ټوکه کې خپور شوى سیند دى چې د ۱۳۸۵ هجري لمریز کال په ترڅ کې یې د هېواد د خپلواکۍ د ۸۷ مې کلیزې په ویاړ د فرهنګ او ځوانانو د وزارت له خوا په جوړ شوي ادبي او هنري کانکور کې لومړى مقام ترلاسه کړ.

۳- انګلیسي - پښتو فلسفي قاموس ( English – Pashto Philosophical Dictionary ) : دا سیند په ( ۱۰۰۰ ) ټوکونو کې خپور شوی، چې ۳۲۲ مخونه لري او په ۱۳۸۴ هـ لمریز کال کې د هېواد د خپلواکۍ د ۸۲ مې کلیزې په ویاړ د اطلاعاتو او کلتور د وزارت له خوا په جوړ شوي ادبي او هنري کانکور کې د لومړي مقام ګټونکی دی.

۴- طبي ترمینولوژي ( Medical Terminology ) : دا کتاب په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې په ( ۱۰۰۰ ) ټوکونو کې خپور شوی او ( ۳۲۰ ) مخونه لري.

۵- د باران په ژبه : د جبران خلیل جبران د غوره ویناوو غورچاڼ دی چې په ( ۱۰۰۰ ) ټوکه کې خپور شوی او ( ۱۲۳ ) مخونه لري.

۶- د دولسم ټولګي له پاره د ریاضي د تمرینونو حل : چې ګڼ ځله چاپ شوی دی.

۷- د یوولسم ټولګي لپاره د مثلثاتو د تمرینونو حل : چې ګڼ ځله چاپ شوی دی.

۸- د یوولسم ټولګي لپاره د ریاضي د تمرینونو حل : چې ګڼ ځله چاپ شوی دی.

۹- بهیج پښتو - انګلیسي سیند ( Bahij's Pashto- English Dictionary ) : چې څه د پاسه ( ۴۰۰ ) مخونه لري.

په پای کې ددې لیکنې د هر لوستونکي څخه په ډېر درناوي هیله کوم چې په خپلو دعاګانو مې ولمانځي.

ستاسي بهیج

۲۰۰۶/۱۰/۲۵



# سر بلند (حکیمي)




زما نوم سربلند د الحاج عبدالصبور زوی چې تخلص خپل حکیمي کوم د وردگو ولایت د جلگې ولسوالۍ د بخشک په کلي کې په ۱۳۴۵ هـ ل کال کې زېږېدلی یم.
ابتدایي تعلیمات مې همدلته عبدالواحدخان په منځني ښوونځی کې ترسره کړې او ثانوي تعلیمات مې په پېښور کې د امام اعظم رح په مدرسه کې سرته رسولي همدا راز لوړې زده کړې مې د ساینس او ټکنالوژۍ په پوهنتون د عربي ژبې په ادبیاتو او تربیه کې په ۱۳۷۱ هـ ل کال کې پای ته ورسولې. له دې څخه وروسته په بېلابېلو ځایو کې د زده کړې او تربیې په څانگه کې دنده اجرا کړېده لکه: په پکتیا، غزني، جلگه او تر ټولو زیات وخت مې په چک وردگ روزنتون کې د مدیر په توگه دنده اجرا کړې چې تراوسه هم په همدې روزنتون کې په کار بوخت یم.

د کلام نمونه:

پوهنه

پوهه او علم هغه څراغ دی چې په تیارو کې ډوب خلک رڼا ته راوباسي، د جهل ناپوهۍ بې تمدنۍ هر ډول تناب او تغرونه ټولوي، بېده او بې خبره قومونه پوه کوي او د هغه رازونو او وسایلو څخه بې خبروي چې د ژوندانه ټولې هوسايي او اسانتیاوې په کې نغښتي دي، کومه ټولنه چې د پوهې او علم څخه بشپړ خبرتیا ولري خپل حقوق لاس ته راوړی شي او نورو ته هم خپل حقوق او مصالح وربېژني ، په علم سنبال خلک د مشعل په شان تیارې د جهل ظلم او استبداد له منځه وړي، د علم او بې علم مثال په تیاره کې د سفر په شان دی چې علم ولري د برقي څراغ غوندې ګټه ورکوي او بې علمه د ړانده او بې چراغه روان کس وي چې په کومه کنده او بدیا کې ولوید همغه یې ځای شي.

ازادي، تمدن ، مدنیت په علم لاس ته کېدای شي، نن چې د افغانستان مظلوم ولسونه د علم او پوهې څخه بې برخې دي حتی د بل چراغ څخه هم مناسبه ګټه نه شي اخیستی څومره په مشکلاتو کې اخته دي ، د اد بې پوهۍ او بې علمۍ نتیجه ده .

ما زیات نثرونه لیکلي دي چې زیاتره یې د پوهې او تربیې په اړوند دي چې تراوسه پورې چاپ شوي نه دي، که خدای ج د چاپېدو زمینه برابره کړه نو خپلې لیکنې به چاپ کړم تر څو په راتلونکې کې زموږ ولس ترې ګټه پورته کړي.

# سیدصابر (عزیز)




قلم مې دی راخیستی ټول جهان به لړزوم
ټوپک مې غورځولی دی خپل ځان به جوړوم
سیالیو ته ور وځم لوڅ سر برېنډې پښې
تعهد مې دی کړی خپل وطن به جوړوم

سیدصابر ((عزیز)) د ډگروال عبدالودود خان ((عزیزي)) زوی په ۱۳۲۴ هـ ل د غبرگولي د میاشتې په پنځلسمه نېټه دې دنیا ته سترگې غړولي دي.
لومړنۍ زده کړې په خپل پلرنی هستوگنځي د امام ابوحنیفه رح په ښوونځی کې او منځنۍ زده کړې البته تر لسم ټولگي پورې د خالدبن ولید د تکیه په عالي لیسه کې او بیا د کابل

ولایت د ځلورمې ناحیې د نادریه له عالي لیسه څخه په ۱۳۸۳ هـ ل کې فارغ او په ۱۳۸۴ هـ ل کال د کانکور په آزموینه کې ګډون وکړ چې د کابل پوهنتون د ژورنالیزم پوهنځی ته بریالی شوم، چې تراوسه پورې په همدې پوهنځی کې د دوهم کال زده کړې پرمخ وړم.

د کلام بېلګې :

یو افغان ملت یو د یوه قانون پیرو یو ټول
تر یوه آسمان لاندې په یوه ارته هستوګن یو ټول
نه غواړو تبعیض، بې اتفاقي پر دغه خاوره کې
وروڼه د یو بل یو د هیڅا نه موږ کم نه یو

پخلا شه

پخلا شه ستا حضور ته مې ځولۍ راوړې دي
د سرو سترګو دپاسه مې زارۍ راوړي دي
په سپین پلو مې اوښکې له ګریوانه کړه لرې پاکې
جګر دپاسه وینو مې پولۍ راوړې دي
چې کله مې دستا دعشق خطونه کړل راټول
غماز راته څو ځله سپرمغۍ راوړي دي
زړګی مې راته وایي چې شپېه درسره کښېنم
وروستی د ژوند شپېې مې ځنډنۍ راوړي دي
مرګی راته د سترګو دروازه کې انتظار دی
د ژوند اخیر شپېې مې په سلګۍ راوړي دي
وروستی وصیت مې واخله خیر زه درنه درومم
دغم تورې جامې مې همیشنۍ راوړي دي
عزیزه! کفن واغونده چې دمه دې شي جوړه
طبیب درته د مرګ د خوب ګولۍ راوړي دي

مومن خان مینې پسې اخیستی دی تم کېږي کله
په نیمه شپه کې د کلاګانو په برجونو خېژي
نصیب یې نه شو سپین جبین د معشوقي پر ژوندون
د شیرینو په ځای لاس پر بل ادم ولګید
په هغه دم یې یو خنجر د زړه په سر ولګید

تږی چنار

زموږ د کلي د ګودر د غاړې جګ چناره
نن دې دا پاڼې راته ولې داسې زېږې ښکاري
یو څه رښتیا خو راته ووایه داحلق ولې داسې وچ دی
د چا له لاسه ستا ځواني داسې برباد ښکاري
چې هر ماښام به ستا چاپېره پېغلې جونې پنډې
اوس دې دا مینه راته ولې بیابان ښکاري
په دې ګناه چې جېنکو به درنه تار تاووه
د خپل مین لپاره ښتي دې په ځان ښکاري
ګودر خو هم درته د ژوند آب حیات در نه کړ
کنه یو څو ورځې ژوندون خو وې عیان ښکاري
د مات منګي ټوټې او ستا څانګې هر خواته وینم
شرنګ د بنګړو، شر داوبو او نه هغه ښکلي بلبلان ښکاري
زما غریب په دعاګانو که څه کېږي یاره
همیش زما دواړه لاس پورته په دعا ښکاري
خدایه یو څو څاڅکې باران خو پرې را وه وروي
ددې غریب پښې ځمکې لاندې په لړزان ښکاري
عزیزه ستا په سترګو څه د غم پردې راغلي

چې هرې خواته ځي هر بڼ درته ویران ښکاري .

تراوسه پورې کوم چاپي اثر نه لرم. په نژدې راتلونکې موده کې به مې یوه شعري ټولګه چاپولو ته چمتو شي او همدارنګه د یوه انګلیسي کتاب پښتو ژباړه د ژورنالیزم په برخه کې هم ترکار لاندې ده .

# شفیق الله (اکرمي)



شفیق الله اکرمي د نصیح الله زوی له نن څخه (۳۴) کاله دمخه په (۱۳۵۰ هـ ل) کال د وردګو ولایت دچک ولسوالۍ د پنه په کلي کې زېږېدلی یم ، لومړنۍ زده کړې مې په بېلو بېلو ښوونځیو کې ترسره کړي او په ۱۳۷۱ هـ ل کال کې د حضرت عمر فاروق (رض) عالي لېسې له دولسم ټولګي څخه فارغ شوی یم. لوړې زده کړې مې په خصوصي شکل د کیمیا په رشته کې د ساینس پوهنځی له استادانو څخه ترلاسه کړي، د پنځو کالو راهیسې د حضرت عمرفاروق په عالي لیسه کې د کیمیا د استاد په توګه دنده ترسره کوم

د کلام بېلګې:

غزل

خلک خوشحالي کړي زه غمو کې یم
دوی کړي هوسونه زه سلګو کې یم
ټول وايي مستي او خوشحالي ده نو
زه د اوښکو ډنډ او سیلابو کې یم
څوک دي په حیرت کې دګل پاڼو ته
ښې د ملنګۍ جامې په تن لرم
نه چې پردي رسم، رواجو کې یم
یاد چې نن د خوارو اوغریبو کړم
څکه خو زه شمار په لیونو کې یم
څم به په دردمن زړه له دنیا څنې
زه د خپل ماحول په زولونو کې یم
درد د زړونو لیکم په قلم سره
زه اکرمي ګیر اوس په شعرو کې یم

غزل

دغه څو تورکي مې د ژوند حسین ګلان وګڼه
یا مې د ژوند د خاطراتو لنډ داستان وګڼه
خیر ظاهر که څه ښکلا په کې نه شته
خو په باطن کې د ښکلا ترجمانان وګڼه
آب ذلال غوندې له یو مخې صفا، صفا دي
په خوشبو کې له ګلابو او ریحان وګڼه
یو څه به وروسته وي د مینې له کاروانه څنې

ولې وفا کې يې تر ټولو مخکښان وګڼه
ستوری به نه وي چې په هسک ځل وکا
د چت وړوکی يو قنديل کې اويزان وګڼه
زه اکرمي د تصور دنيا ته لاړ لټوم
غزل ويل غزل ليکل مې يو ارمان وګڼه

## د ګل مينه

د ګل مينه مې خوښه او له ګل سره خندل خوښووم
که وس مې وشي هر ساعت کې يې ليدل خوښووم
زما يې خوښيږي نازکانه او سنګينی نظر يې
يو ځلې نه دغه خصلت يې په څو ځل خوښووم
ماته يې وکړلي د حال په ژبه څو خبرې
ځکه له ده سره هميش خبرې کړل خوښووم
چې د سهار نسيم چليږي دی خوشحاله وي ډېر
زه يې ښايست او خوشحالي او خنديدل خوښووم
ستايل يې کيږي هميشه د شاعرانو په خوله
همدغه وجه شوه چې زه هم اوس غزل خوښووم
ما اکرمي له شاعرانو بل ښه ګل ونه ليد
د خيال دنيا کې يې هميش زه ګرځيدل خوښووم

د درې کالو راهيسې شعر ليکم د شعر ډيره برخه مې غزل او ملي ترانو ته ځانګړې کړې ده، لنډ نثرونه او مقالې مې هم ليکلي دي. تر اوسه پورې د ۲۰ يا ۷۰ په شاوخوا کې مې شعرونه ليکلي خو دا چې همدا اوس زموږ په سيمه کې کوم ادبي بهير وجود نه لري نو ځکه زما شعرونه کم دي او هغه د شعر او شاعرۍ ملګري چې يو بل سره به د شعر خواله کول اوس په نژدې کې له موږ سره نه شته او تر اوسه پورې کومه شعري ټولګه نه لرم.

# عبدالرحمان




زه عبدالرحمان د نادرخان زوی د وردگو ولایت اوسیدونکی یم. عمر مې شل کالو ته رسیږي او فعلاً په یوولسم ټولګي کې په زده کړه بوخت یم، له شعر، داستان او ناولونو سره مې مینه ده ، او شاعري مې له خپل ورور څخه چې د شمشاد ټلویزون عمومي ډایرکټر دی زده کړې او په څو مشاعرو کې مې ګډون هم کړی دی. اوس مهال شعر او داستان لیکم او ځینې ډرامې مې هم تمثیل کړیدي. د یادونې وړ ده چې یو فلم مې هم جوړ کړی چې په دې کې دوه نورو ورونو هم راسره کار کړی دی، خو تراوسه لا پوره بشپړ شوی نه دی د ۳۰ دقیقو په اندازه تکمیل دی .

د کلام بیلګه:

يو سحر يوې صحرا ته

يو سحر يوې صحرا ته په ښکار وتی وم روان
يو دښتي ته رسيدلم چې مې وليده جانان
حيران شوم چې دا څه کړې دلته ناست څېرې ګرېوان
ور روان شومه طرفته چې ترې وکړمه پرسان
ده ويل مه راځه نږدې زه يم وتلی له جهانه
رنګ يې ژېړ په دوړو پټ لکه څوک پاتې له کاروانه
ده ويل زه يم راغلی دغه غر ته ناګهان
نور به څه وکړم دلته يادومه خپل سبحان
د هاروت په شان عذاب زه قبلوم په دې مکان
دا وينا د بل چا نه ده دغه ليکي همت جان

زما شعرونه زيات دي خو د امکاناتو نه شتون له کبله چاپ شوي نه دي چې تقريباً زما د اشعارو شمېره (۱۰۰) ته رسيږي. لکه څنګه چې مې مخکې يادونه وکړه داستانونه ليکم او د ډرامو له تمثيل سره هم بلدتيا لرم چې په سيميزو جرګو او ځېنو دولتي جلسو کې مې د ډرامو ښه تمثيل کړې او جايزې مې هم ترلاسه کړېدي. او يو ۳۰ دقيقه يې فلم مې د افغان فلم په شرکت کې چاپ ته رسيدلی دی.

## عبدالرحمان (مسترشد)




زه استاد عبدالرحمان «مسترشد» د وردگو ولایت د شیخ آباد د نوریو په لوړ کلي کې په ۱۳۴۸ هـ ل کال زېږېدلی یم. د پلار نوم مې امیرمحمد دی، خصوصي تعلیمات مې له جیدو استادانو څخه لاسته راوړي وروسته له هغې د دعوت الجهاد د پوهنتون له شرعیاتو پوهنځی څخه د «جیدجداً» په درجه کې فارغ شوی یم. اته کاله مې په دیني علوموکې استادي کړي، دوه کاله له جید قاري برکت الله سلیم سره شاګرد پاتې شوی یم. له شعر، مضمون او ادب سره ښېخې زیاته مینه لرم، یو څه اندازه مضامین او شعرونه د الله جل جلاله په فضل او مرحمت سره لرم.

د کلام بېلګه:

قرآن وايي

| | |
|---|---|
| زه يم د مولا کتاب | ښکلی مصطفی کتاب |
| متعال لوستلی يم | جبرئيل راوړی يم |
| لس چنده نيکي لرم | لوستو کې آساني لرم |
| رحمت مې په تنزيل کې | ښايست مې په ترتيل کې |
| رانه کېږي آغازونه | راته کېږي طوافونه |
| قوي معجزه يم زه | غوره معشوقه يم زه |
| مضمون مې ډېر پوخ دی | حيران راته هر سوچ دی |
| لار رانيسه د تعليم | لاس پرانېزه د تسليم |
| جنت کې دې عزت کړم | رحمان ته دې وصلت کړم |
| بندې ژاړم تو تو کې | ښه ښکارم په لوستو کې |
| پټ ما کې ښه شيان دي | هم ښه دارو درمان دي |
| زه هيڅ زړښت نه لرم | ژوند ته کمښت نه لرم |
| نصيحت يم انسان ته | الوزم رحمان ته |
| شکايت کړم آسمان کې | نورانيت کړم جهان کې |
| ويرولي مې دې غرونه | اوبه دي که سيندونه |
| مه شه له منکره مې | تښته له قسمه مې |
| هميش تلاوت کوه ته | علمي وراثت کوه ته |
| حروف مې ډېر آسانه | (مسترشد) ته ښه روښانه |

د ليکوال آثار:

د عاجز بنده هغه تصنيفات چې تراوسه پورې د کاغذ پر مخ بې چاپه بندي پاتې دي:

۱- عقيدوي لارښووني.

۲- د اختلاف له هلاک کوونکي کندې څخه نجات.

۳- غسل الميت و ما يتعلق به.

۴- شرح شمعه.

۵- د تجويد قواعد «شرح ابيات جزري».

۶- عملي تجويد.

# عبدالجبار ( ناصري )




نوم مې عبدالجبار « ناصري » د پلار نوم مې مستوخان د وردگو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ د کړوخيلو د کلي اوسيدونکی يم او په ۱۳۶۷ هـ ل کال کې په يوه متوسطه کورنۍ کې زېږېدلی يم. پلار مې د انگليسي ژبې ژباړونکی ؤ، خو زه له پلار څخه په دوه کلنۍ کې پاتې شوی يم. تر يوولسم ټولگي پورې مې زده کړې کړېدي چې له نهم کلنۍ څخه مې په شعر ويلو پيل کړی او تر اوسه هم شعرونه ليکم.

د کلام بېلگې:

غزل

لکه سپوږمۍ ښکلا دې بیا د لمر له نوره راځي
هفت رنګه اور دې بیاد سترګو له منشوره راځي
نغمې د حسن دې په بم د رباب ولګېدې
نغمې د ترنګ دې د تنکي رباب له سوره راځي
د تورو شپو د سپینو نور دې له سترګو پریوت
لکه موسی چې لوی فرعون ته له طوره راځي
چې مې آه خوب د سراب اوبه ستا ونه ځنبلې
خوب بې تعبیره لکه زما له دې کوسوره راځي
بیا د پردۍ شپېلۍ نغمه زما تر غوږه شوله
د حسن ځوږ ته دې پردی ساز له تربوره راځي
چې ستا د حسن په تنور کې زه نینه نینه شم
د حسن اور دې بیا له هغه شان تنوره راځي
اشنا زما له د تصور په آینه خپه ؤ
خفګان له ما یې له هغه کاریکاتوره راځي
«ناصري» ځو به د اشنا له سترګو اور وانه خلې
دغه خفګان بۀ ستا له هر یوه سروره راځي

غزل

کړم انتظار لیل النهار د انتظار ګذار ته
نشته طاقت د نه وصلت نور سهار ګذار ته
دلته دې اور په هر یو کور په هر یو سر بلېږي
دلته هر سر شولو سنګر د هر ګذار ګذار ته
هر مازدیګر لکه سقر شو سور له اوره څخه
هر یو ماښام شو لکه جام د هر میخوار ګذار ته

لکه پتنګ شومه پتنګ له دې ژوندونه څخه
سوی پرهر ، زخمي تتر شوم د انګار ګذار ته
شو لکه سکور سوی په اور هر ښایسته څوانکوټی
تل به وي سر وي په خنجر د هر ناتار ګذار ته
دي میرني ای ناصري دا افغاني میړونه
لري الفت آن تر قیامته د هر ښامار ګذارته

د شعرونو شمېر مې د سلو په شاوخوا کې دي چې زیاته برخه یې غزل جوړوي، همداراز ځېني لنډې کیسې مې له ګوتو تیري کړي چې په راتلونکي کې د چاپ زمینه برابره شوه نو له چاپه یې هم راوباسم

# عمادالدین (پژمان)




عمادالدین پژمان د قاضي شاه حسین «رحیمي» زوی چې په ۱۳۵۹ هـ ل کال کې د وردګو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د سالارو په کلي کې مې زوکړه شویده. تر شپږم ټولګي پورې مې د قیس ابن سعد لیسه په پېښور کې لوستې، وروسته د کویت الخیر د لیسې څخه فارغ شوی یم او د کانکور د آزموینې څخه وروسته د کابل پوهنتون د فارمسۍ پوهنځی ته بریالی شوم، چې په ۱۳۸۱ هـ ل کال کې له همدې پوهنځۍ څخه فارغ شوم.

د لیسې له وخت راهیسې مې د شعر سره مینه لرله او یو نیم مې هم لیکل، خو بیا وروسته د پوهنتون په لړ کې مې په مشاعرو کې هم ګډون کاوه او ډېر شعرونه مې لیکل، چې څه نا څه ورک هم شول. د ټولو پښتو شعرونو سره مینه لرم خو د پسرلي صیب، کاروان صیب، درویش دراني او داسې نورو شعرونه مې ډېر خوښېږي. زما ځینې شعرونه په مجلو او اخبارونو کې چاپ شوي دي.

شعرونو بېلگې:

پاس د امید په اوږو پورته کړه ربنتیا جنازه
د مینې غولې نه شوه جگه د وفا جنازه
عشقه! درندۍ ځوانۍ هیلې مې د خاورې کړلې
ژونده! لحد ته لېږدولې زما او تا جنازه
ورور ته د توري پړکولو نتیجه مې گنم
تور مابښامونه چې نن اخلي د سبا جنازه
زړگیه دا به د نصیب ؤ چې غمونه به وي
عشق د هوس له بناره واخسته زما جنازه

عذر به دې ډېر کړم

عذر به دې ډېر کړم چې داغ په زړونو مه اېږده
لږ ماته هم وگوره قدم په غرونو مه اېږده
زړه مې ستا په مینه کې د گل غوندې زرغون شولو
زر به درته مړ شي ته یې د سر په لومو مه اېږده
چاک سینه مې ښه ویني د خدای لحاظ ته وگوره
پل مې په زخمي زړگي د سپینو اوښکو مه اېږده
هیلې مې کوترې شوې دې تاخواته درالوزي
ته ورته دانې په زړه نا زړه لاسونو مه اېږده
مینې ته مې روح یې زه ژوندی گرځم په تا باندې
مړاوې «پژمان» مه وژنه ، جنډې په زړونو مه اېږده

غزل

تا چې له سرو شونډو د میو میخانه جوړه کړه
ما مې له زړه د امیدونو خزانه جوړه کړه
زه دې د هجر لمر سېځلی وم ستومانه ومه
تا رانه بره په آسمان کې آشیانه جوړه کړه
زه د در ملنګ ولاړ وم د دیدن لپاره
تا دې د حسن صدقه ته بهانه جوړه کړه
ما وې «پژمان» به د ګلونو منځ کې شپې تیروي
تا مې له سترګو نه جونګړه کرانه جوړه کړه

غزل

یاره مجبور یم کاته زما په واک کې نه دي
لیده ګناه نه ده، لیده زما په واک کې نه دي
نه غواړم زه چې مې په خپله سینه اور پورې کړم
دا ستا له مینې خلاصېده زما په واک کې نه دي
لیونۍ مینې راته پرېښوه د سلګیو لړۍ
چینې د اوښکو وچېده زما په واک کې نه دي
زه لیونی یم، نه پوهېږم چا نه څه وغواړم
د حسن خوا ته نه ورتله زما په واک کې نه دي

دوې شعري ټولګې لرم چې لاتراوسه نه دي چاپ شوي، خو که دچاپ زمینه برابره شي چاپ کولو ته یې چمتو یم.

# علم جان ( پتمل )




زما نوم علم جان ((پتمل)) د خليل الرحمان زوی، د وردگو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ دتنگي د درې اوسيدونکی يم. ( ۲۲ ) کاله مخکې د لومړي ځل لپاره په دنيا کې وزېږېدم.

لومړنۍ زده کړې مې د تنگي درې په يوه محلي ښوونځۍ کې او وروسته ثانوي زده کړې مې د امام ابوحنيفه رح په عالي ليسه کې سرته رسولي چې په ۱۳۷۹ هـ ل کال د کانکور د آزموينې له گډون څخه وروسته د کابل پوهنتون، ژورناليزم پوهنځۍ ته بريالی شوم، چې دوه کاله تعجيل څخه اوس د پوهنځۍ په څلورم ټولگي کې يم.

له دوو کالو راهيسې مې د شعر او لنډو کيسو ليکلو ته مخه کړې چې تراوسه مې کوم آثار نه دي چاپ شوي چې يوڅه بېلگې يې دادي:

د شعرونه بېلگې:

### قطعه

زما له سوي زړه تاوونه ګرم ګرم خيژي

او هم له خولې مې حوصلې د ږېر نرم نرم خېژي

پټ په سينه کې مې زړګی کباب کباب شولو

نفس مې ګوره چې هرځای کې زه و درم خيژي

ستا د وصال چېغې وهي ورو ورو ټوپونه وهي

خالي جسد زما جانانه لوړ له شرم خيژي

### څلوريځې

د يار د غنم رنګه مخ له لاسه زه بيماريم

په زړه يې يم ويشتلی زخمي پروت يمه افګاريم

جوړښت مې په ديدن نه په ملا نه په درمل شته

د حسن د جانان مې په هروخت کې تابعدار يم

*************

دې غنم رنګه اننګو خو دې جهان تباه کړ

زما د زړګي ټول ارمانونه دې پناه پناه کړل

دا د «پتمل» د زړه ازار دې ګوره واخيستلو

چې د نيمګړي آرمانونه د عاشق بېګاه کړ

### د اوښکو سېلاب (لنډه کېسه)

د ماښام شېبې وې د واورې سپين بخرکي کرار کرار راتوييدل او کله به چې د کوم بخرکي يو مخ د ګروپ رڼا ته ښکاره شو نو يو ډول زړه وړونکې ښکلا به يې کوله او ما ددغې ښکلا سيل کولو چې يو ناڅاپه مې د رنګ د ېوال چې يوه وړه څپرګۍ يې د څنګ سره جوړه

شوې وه پام شو، او يوه توره څېره مې تر سترګو شوه او په بدن مې يو څه وېره راخوره شوه خو بيا هم د وېرې سره سره د دېوال ځنګ ته ور روان شوم. کله چې د دېوال خوا ته لږ ور نږدې شوم نو يو ډول اوښ، اوښ اواز مې تر غوږو شو ، په دې وخت کې چې څومره د دېوال خوا ته نږدې کېدم اواز هم په زوره کېدو کله چې د دېوال ځنګ ته ورسيدم، ګورم چې يو ښکلى هلک د دېوال ځنګ ته تر ورې ځيرې لاندې ناست دى او خپلې د لاسو ګوتې يې په خوله اوښ، اوښ کولې او د يخنۍ له لاسه يې بدن په لړزه وه. ما خپل ځان د هلک ځنګ ته ورورسو له لږ ځنډ درېدو څخه وروسته مې د هلک په اوږه لاس کېښود او هغه خپلې مړاوې سترګې زما خواته را واړولې حيران، حيران يې راته کتل ، له لږ وخت چوپتيا څخه وروسته مې ورڅخه وپوښتل: هلکه ته دکوم ځاى څخه راغلى يې ؟او ځنګه په دې يخنۍ کې ناست يې ؟

ايا ته نه وېرېږې ؟ چې دلته به د يخنۍ له لاسه مريض شي او يا به خپل ژوند له لاسه ورکړې، هلک په ژړغوني او کرار اواز راته وويل: کاکا! ما څه کوي همدلته مې پرېږده تر دې څخه خو مې مرګ ښه دى، چې همدلته د يخنۍ له لاسه مړ شم ، او بيا يې خپل سر په زنګنو کېښود.

نو ما بيا غږ پرې وکړ هلکه! پاڅه چې دواړه کور ته ځو ته ځنګه دا توره شپه په دې يخنۍ کې سبا کوې؟

ددې خبرې په اورېدو سره هلک خپلې د اوښکو ډکې سترګې زما طرف ته راواړولې او په لړزېدلي اواز يې راته وويل : کاکا!

زه ته لاړ شه او زه نه شم کولى چې ستا سره کور ته لاړ شم.

نو په دې وخت کې مې چې لږ د هلک پښو ته په ځير وکتل نو ګورم چې د هلک پښې هم نشته او لوڅې پښې ناست دى، بيا مې په لږ تونده لهجه ورته وويل : پاڅه په دې توره شپه او يخه واوره کې لوڅې پښې او لغړ بدن ناست يې اخر خو به ليونى نه وې!!؟

هلک زما ددې خبرې په اورېدو له ځايه پاڅېد او په پټه خوله دواړه د کور خوا ته روان شو، په دې وخت کې زمونږ تر کوره پورې يو څه واټن موجود ؤ خو هلک مې په چټک ګام سره تر خپل کور پورې ورساوه، کله چې کوټې ته ننونو نو کوټه ډېره توده وه د يو څه وخت په تېرېدو سره دهلک د پښو ګوتو درد پيل کړ. نو بيا زه پاڅېدم په يوه لوښي کې مې يخې اوبه راوړلې او

هلک ته مې وویل : چې خپلې ګوتې په اوبو کې کېږده ځکه ما دا خبره له خپل بابا څخه اورېدلې وه چې کله ګوتې ډېرې یخې شي نو د ګرمېدو سره په درد راځي، نو ددې لپاره چې درد په ارام شي باید د یو څه وخت لپاره په یخو اوبو کې کېښودل شي.

په دې وخت کې د هلک د ګوتو درد یو څه په ارام شو. او بیا ما له هلک څخه وپوښتل: ته څوک یې ؟ او څنګه په دې یخه او توره شپه کې د باندې ناست وې؟

هلک راته په ژړغوني اواز او ډکو سترګو وویل : کاکاجانه! زه دهغې بر کلي د منګل زوی بشیر یم، څلور میاشې کېږي چې زموږ په کور باندې داد بشرد حقوقو ټیکه دارانو بمبار وکړ او په هغې کې زما مور، پلار، دوه ورونه او یوه خور ووژل شول او زه په هغه شپه د ترور کره مې تللی وم او ژوندی پاتې شوم.

او بیا هلک په زوره ، زوره وژړل او په ژړا کې یې وویل :

کاشکې زه هم په دغه شپه د ترور کره نه وای تللی او زه هم مړ شوی وای، خو خدای زه د همدې غمو لپاره ژوندی پرېښی یم.

بیا یې ژړا یو څه ارامه شوه او د (آه) له اواز څخه وروسته یې خپلو خبرو ته دوام ورکړ او وې ویل : پس د خپل پلار او مور له مرګه مې زه د یو تره سره اوسېدم خو دوخت په تېرېدو سره د تره او دهغې د کورنۍ چلند زما سره مخ په خرابېدو وو چې بلاخره مې د تره ښځې یوه ورځ راته وویل : چې ځه تر کومه وخته به زما په کور کې په ټیټو سترګو ژوند کوې د ځان لپاره دې ځای پیدا کړه او په دې کور کې نور دستا د اوسېدو لپاره ځای نشته. نو ما مې بیا دا خبره کاکا ته وکړه او هغه هم د خپلې ښځې خبره راته وکړه.

نو زه په همغه سهار د تره له کوره راووتلم او روان یم چې ځان لپاره داسې یو ځای پیدا کړم تر څو دا د ژمي سړې شپې په کې تېرې کړم او بیا ددې خبرې سره د هلک د سترګو څخه سیلاب را روان شو او خپل سر یې په زنګنو کېښود او د یو څه وخت د تېرېدو سره همداسې سر په زنګنو ایښی ویده شوی وو.

# عبدالله (شیرزی)



نوم مې عبدالله تخلص مې شیرزی د خدای نور شیرزي زوی په ۱۳۵۸ هجري لمریز کال کې د میدان وردګو ولایت د نرخ ولسوالۍ په ده حیات کلي کې زېږېدلی یم.
په ۱۳۷۸ هجري لمریز کال په پېښور کې د میوند له عالي لیسې څخه فارغ شوم چې وروسته مې په اداره او منجمینټ کې هم زده کړې وکړې. درې کاله کېږي چې په لیکنو مې پیل کړی چې یو شمېر لیکنې مې په هېواد او اراده ورځپاڼې، افغان ملت جریده، غوښتنه او ډیوه مجلې، وحدت اونیزه، ټول افغان ویبپاڼه او دریځ میاشتنۍ مجله کې خپاره شوي دي. چاپ شوي مجلد آثار نه لرم خو ګڼې لیکنې لرم چې د موضوع د ورته والي له مخې د کتاب ګوتې بڼه خپلولی شي.

د لیکنې بېلګه:

د خپلواکۍ د ورځې په یاد!
د افغان د ګلو بڼه خوشبويي دې مبارک شه
له انګریز نه دې ګټلې خپلواکي دې مبارک شه
ستا منزل وو په تیارو کې د تیارو لارې وې ګرانې
چې یې لمر ته راووتلې رڼايي دې مبارک شه

دا یو څرګند حقیقت دی چې انسان فطرتاً خپلواک او آزاد پیدا شوی تر څو خپل ژوند، عبادت او د ژوند په چاپیریال کې ستونزې په خلاص مټ او خپلواک ذهن سره حل او د لاښه توب لپاره یې ښې لارې چارې وسنجوي. افغانان هم چې د انساني کورنۍ غړي بلل کېږي کېدای شي چې د هغو ملتونو په ډله کې یې حساب کړو چې خپلواکي یې له خپلو وینو څخه ګرانه بللې ځکه چې په استعمار او غلامۍ یې مرګ غوره ګڼلی او تل یې د خپلو وینو په تویولو سره خپله خپلواکي ساتلې او دا یې د ځان لپاره ویاړ بللی.
آزادي تر پاچاهیه لاتېرې کا
چې د بل د حکم لاندې شي زندان شي
له نن څخه پوره اووه اتیا (۸۷) کاله وړاندې کله چې اعلیحضرت غازي امان الله خان خپله د خپلواکۍ اعلامیه خبره کړه او داسې یې وویل: ((زه ځان او خپل هېواد له کورنۍ او بهرنی نظره په تمامه معنی خپلواک، مستقل او خودمختاره اعلانوم زما هېواد به وروسته له دې د نړۍ د نورو قدرتونو او هېوادونو په څېر خپلواک وي. هېڅ بهرني قوت ته به د یو ویښته په اندازه هم اجازه ورنکړل شي چې زموږ د هېواد په کورنیو او بهرنیو مسایلو کې لاسوهنه وکړي او که څوک غواړي په دې کار لاس پوري کړي توره یې پورته او په همدې توره به یې سر ور پرې کړو.)) د غازي امان الله خان دا اعلامیه حاضرینو د الله اکبر او نصر من الله والفتح قریب سره بدرګه کړه او ویې ویل تل دې وي افغانستان، ژوندی دې وي امان الله خان غازي.

د افغانستان د خپلواکۍ اعلان په هېواد او بهر کې زلزله پیدا کړه ، په ټول هندوستان او د عربو په هېوادونو کې خلک د افغان ملت دې نوي ګام ته حیران پاتې شول. سره له دې چې افغانان په اقتصادي لحاظ ډېر بې وزله وو او په داسې حال کې چې دوی په لومړنیو وسلو ( تورو او ټوپکو ) باندې میدان ته دانګلي وه چې د انګریزانو د داسې پوځ مقابله یې کوله چې په مډرنو ټانګونو او الوتکو سمبال وو، دوی په دې پوهېدل چې وبه وژل شي کورونه به یې وران شي، خو خپله خپلواکي ورته تر ډېرو شیانو غوره ښکارېده، هماغه وو د پښتنو په شرقي او جنوبي برخو کې پاڅونونه وشول ټولو نارینه ؤ او ښځو د تکبیر په غږ سره راپورته شوي او د ښکیلاک په وړاندې ودرېدل د دوی رهبري او مشرتابه لپاره په جلال آباد کې سپه سالار صالح محمد خان، په پکتیا کې سپه سالار نادرخان او په کندهار کې سردار عبدالقدوس خان وټاکل شول. سره لدې چې انګریزانو په خپل ټول توان مقاومت کاوه. خو ملت اردہ کړي وه او نه یې غوښتل چې د ښکیلاک کړۍ یې غاړې ته واچول شي ځکه دوی خپلواکه هېواد غوښته !

آزاد یم زیرپېدلی بنده ګي کولای نه شم
بنده د پاک مولا یم که وم وم که نه وم نه وم

وروسته له ډېرو سربښندنو څخه چې دې ملت وکړه، افغانان د ۱۲۹۸ لیږدیز لمریز کال د زمري په ۲۸ نېټه په دې وتوانېدل چې خپله خپلواکي ترلاسه کړي او د افغانانو دا خپلواکي په رسمیت وپېژندل شوه. دا ورځ دې ټولو په دین او وطن مینو خلکو ته مبارک وي.
سرلوړی دې وي خپلواک افغانستان.

# غلام فاروق




زه غلام فاروق د ارواښاد عبدالروف زوی د وردګو ولایت د شیخ آباد په زین خان خېلو کلي کې په ۱۳۳۷ هـ ل کال د دلوې په میاشت کې زېږېدلی یم، لومړنی او منځنی زده کړې مې د سیدآباد په عالي لیسه کې ترسره کړي، او د کانکور تر آزموینې وروسته د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځی پښتو څانګې ته بریالی شوم. د پوهنتون له فراغت وروسته سمدلاسه په ۱۳۶۱ هـ ل کال کې د جهاد په صف کې د مجاهدینو ورونو سره یو ځای د روسانو په مقابل کې په عملي جهاد لاس پورې کړ، تر دوه کاله عملي جهاد وروسته پاکستان ته مهاجر شوم او هلته مې د مجاهدینو په فرهنګي کمیټه کې دوه کاله او څو میاشتې دنده ترسره کړه ، وروسته بېرته خپلې سیمې او منطقې ته راغلم او د روسانو د وحشي او یرغلګر پوځ تر ماتې خوړلو او وتلو پورې په عملي جهاد بوخت وم. کله چې سرې یرغلګرې روسي لښکرې زموږ له ګران

هېواد څخه د مجاهدينو د توانمنو متېو په زور او د الله جل جلاله په غيبي مرسته ووتلې نومې خپل هغه پخوانی انتخاب شوی مسلک چې معلمي ده په خپله سيمه او ولس کې شروع کړه او په ډېر سختو شرايطو کې مو ورته دوام ورکړ چې دادی تراوسه پورې کله معلم او کله د لېسې مسؤل او کله استادانو ته په ميتودي او پيداګوژيکي سيمينارونو او ورکشاپونو په ټرېنينګونو کې بوخت يم.

غلام فاروق ۱۳۸۵\۷\۲۴

# فریدالله (ساحل)




زه فریدالله «ساحل» د نصرالله زوی د میدان وردگو ولایت د نرخ ولسوالۍ د شهاب الدین په کلي کې مې په کال ۱۳۶۳ هـ ل کې دې فاني دنیا ته سترگې پرانېستې.
لومړنۍ زده کړې مې د میدان وردگو ولایت د شهاب الدین او خالد بن ولید په لیسو کې سرته رسولي دي او له ۱۳۸۳ هـ ل نه راپه دېخوا د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو په پوهنځۍ کې په زده کړه بوخت یم، له دوو کلونو راهیسې مې ځینې لیکنې د لنډې کېسې، طنزاو ادبي ټوټې تر عنوانونو لاندې لیکم، خو زما د خوښې وړ فورم طنز دی. تر ننه مې تقریباً تر دېرشو عنوانو لاندې نثرونه لیکلي چې ځینې یې په مجلو او اخبارو کې خپاره شوي دي، او کله کله مې په ادبي غونډو کې کره کتنې ته هم وړاندې کړي چې د خلکو لخوا ستایل شوي

دي. خو د اقتصادي او ځنې نورو ستونزو له امله په کتابي بڼه نه دي چا پ شوي او هيله کوم چې په راتلونکي کې د لوستونکو لپاره په کتابي بڼه چاپ کړم.
د کلام بېلګه:

زه او د کابل ښار

لومړی ځل مې ؤ چې کابل ښار ته راغلم، په کوټهٔ سنګي کې د موټر په انتظار ولاړ وم، يو خوا او بله خوا مې نظر اچوه ورانې کنډوالې، سپېرې ځېرې او جمپ داره سرک تر سترګو کېده، موټر ډېر کم راتلل او خلک ډېر پرېمانه ؤ، په يوه کې هم د سپرېدو ځای نه وو، د انتظار شېبې وې تېرېدلې ناګهانه يو راف موټر راغی او کلينر يې نارې وهلې شاراو، شاراو، ټولو خلکو يې تود هرکلی وکړ او په لوري يې ورترپلل په دې ګڼه ګوڼه کې هر چا خپل کار کاوه کيسه برانو څو جيبونه په استر کړل او دجيبونو خولې يې له خندا شنې کړې، په دې ګڼهٔ ګوڼه کې ما هم ځان د موټر دروازې ته ور نژدې کړ او لومړی پښه مې ورجګه کړه په دې حالت کې د موټر سرعت زيات شو او زما دوېمه پښه په دروازه ډولې ځای ولږېده او لږ ګوډ غوندې شوم په دې حالت کې د پوهنتون يو محصل چې د موټر په دروازه کې ناست وو ماته يې لاس راکړ، ما چې سم له لستوني ونيوه او زور مې کړ د محصل لستونی له يخن قاق څخه بېل شو او دمحصل بې چاره د پنځو روپيو يخن قاق مې ورته وشکاوه او په دې حالت کې کيلينر په ټيله ټيله موټر ته ورپورته کړم او محصل د خپل يخق قاق تاوان راڅخه واخيست، خو کيسه برانو بې چاره ګانو چيرته زما جيب وهلی شوی، داسې کلک مې لاس نه ؤ پرې ايښی.
د موټر حالت په دې ډول وو بريک خو لا پرېږده چې اشترينګ هم سم کار نه کاوه، د اوسپنې زنګونو خاص رنګ او خوند د موټر چوکيو او سيټ ته وربښلی ؤ او څوکۍ يې يو بل ته مخامخ وې او دهلېز يې د ولاړو لپاره ؤ او موټروان خپله کيسټه په لوړ آواز اورېدله نابېره دې موټر زغلولو د لوبې لوبغاړی شو يو وار موټر په جمپ کې ولګېده ما دځان تکيه کولو لپاره د يوه ځيرړه پښتانه پر سر لاس کېښود او له جمپ سره مې د پښتانه ماما لونګۍ ول ول په غاړه کې راخطا کړه، نژدې ؤ چې ښه کلک مې ووهي خو خلکو ځنې خلاص کړم، بيا موټر په جمپ کې ولګېد او ما د يو لرغوني مامور په پر سر لاس کېښود چې په ذربين به دې هم له شېږ

تاره وېښتانو زيات نه ؤ پيدا کړي او ګرمي هم په آخره درجه خولې کړې وې او چې سم مې لاس پرې کېښود نو لاس مې وښوېده او د قوال هګيو په ټوکرۍ کې ورولويدم، اوس نو مجبوره يم چې دا تاوان په غاړه واخلم او تاوان ورکړم کله مې چې لـه دې جنجال نه ځان خلاص کړ نو يو مهربانه سړي چې په موټر کې ناست وو ډېر يې زړه راباندې وخوږېده کله يې چې زما پـه مـخ د هګيو پوستکي سريښ وليدل او کالي مې په موټر کې تک تور شوي ؤ او پښـه مې هم ګوډه او خلک له خندا راته شنه وو او ځوانانو رشخند راباندې واهه يو خوا او بلـه خوا يې پـه موټر کې ټېل وهلم مخامخ سړي ته يې وويل وروره مسلمان خو يې ځای ورکړه له دې سره هغه هم لږ ځای راته خوشې کړ او راته يې وويل : راځه وروره دلته مخامخ راته کېنه کله چې زه لږ کوپ شوم او په ځای کې کېښناستم د کوپ والي په حالت مې سرد مهربانه ماماجان پوزې ته ښه برابر وو په دې وخت کې بيا موټر په جمپ کې ولويد او زما سر د مهربانـه مامـا لـه پوزې سره وجنګېده او پوزه يې ويني شوه، خو طالع مې وې چې سړی له جنګه غورځېدلی و او ما له ډېره ډاره يو غټ ټوپ وواهه او پښه مې د يوې ترور په چادري کې ونښتله او په بله ترور ور ولويدم او لاندې مې کړه او له شانه مې د ترور د سړي يو سوک په سر وخوړ خو طالع مې وې چې کلينر د کرايې د ټولولو لپاره راورسيد او ورځخه خلاص يې کړم او هغه سړي له ډېره قهره غاښونه راتـه چيچـل اخري سلګون ؤ چې په جيب کې راسره پاتې و دا مې چې ورکړ او ځان مې دروازې تـه رسولی ؤ او زما د ښکته کېدو ځای رارسيدلی وه. د دروازې دستګير مې ټينګ نيـولی وه او پـه انتظار وم چې نورې پيسې مې راکړې او په دې هم پوه وم چې د موټر بريک خو نشته او مجبور يم چې ځان په رفتار کې وغورځوم په دې وخت کې بيا موټر يو جمپ وخوړ او دست ګير زما او سلګون د کلينر په لاس کې پاتې شو، اوس له ما سره يو اتانې هم نه وه پاتې او په سلګونو آرمانونـه مې پـه زړه کې پـاتې شـول لکـه د سينما د تللو، ايسکريم خوړلو، ژوبڼ تـه د تللو، او د مردکيـو داخيستلو حتی د لارې کرايه مې هم نه د رلوده چې بېرته ځان کورته پرې ورسوم.

# فضل الرحمان ( عمرخیل )



فضل الرحمان « عمرخیل » د گل الرحمان زوی په ۱۳۵۴ هجري لمریز کال کې د میدان وردگو ولایت د نرخ ولسوالۍ د عمرخیلو د تاوې په کلي کې زېږېدلی یم. لومړنۍ او منځنۍ زده کړې مې د نرخ ولسوالۍ د سراج المدارس په لومړني ښوونځي او د حضرت خالد بن ولید رض په عالي لیسه کې سرته رسولي دي او په کال ۱۳۷۸ هـ ل کې د نوموړې لیسې له دولسم ټولګي څخه فارغ شوی یم. لوړې زده کړې مې د کابل پوهنتون د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځۍ د قضایي او څارنوالۍ په څانګه کې پای ته رسولي او په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې له نوموړي پوهنځۍ څخه فارغ شوی یم او اوس د افغانستان د اداري اصلاحاتو او ملکي خدمتونو د کمیسون د تعیناتو په بورد کې تحقیق او تحصیلي اسنادو د څېړنې مسؤل یم. زه لا

د ښوونځی د نهم ټولګي زده کوونکی وم چې په ډارمو لیکلو مې پیل وکړ چې وروسته مې د حضرت خالد بن ولید رض د عالي لیسې د فرهنګي جرګې غړیتوب تر لاسه کړ.

باید وویل شي چې نوموړې جرګې د هغه وخت د سیاسي او فرهنګي محدودیتونو سره سره د هغې سیمې د لیکوالانو او شاعرانو په راغونډولو کې مې د پام وړ هڅې کړیدي. کله چې په هېواد کې نوی سیاسي بدلون رامنځته شو او لیکوالانو وکولی شول خپل قلمونه وخوځوي نو مې خپل قلم راپورته او په هېواد دننه مې په یو شمېر چاپي خپرونو کې خپلو لیکنو ته دوام ورکړ. چې ځینې لیکنې مې د کابل ښار د ژغورنې، افغان غږ، دریځ او افغان ځوانانو په خپرونو کې چاپ شوي او اوس په میدان وردګو ولایت کې د دریځ د علمي او کلتوري ټولنې د مشرتابه د ډلې غړی او دنوموړې ټولنې د خپرونکي ارګان (دریځ) مرستیال مدیر یم.

چاپ شوي مجلد آثار نه لرم خو په چاپي او انټرنیټي خپرونو کې مې ګڼ شمېر لیکنې چاپ شوي دي.

بېلګه:

ملي کلتور او ملي ستراتیژي

که چېرې سرې د نړۍ د ګڼ شمېر هېوادونو ته ځیر شي نو دا به په ډاګه شي چې د ځمکې د دغې خاورینې کرې پرمخ ډېری هېوادونه د خپل ملي کلتور او ملي ستراتیژۍ پر بنسټ جوړ شوي دي ، کلتوري ستراتیژي او هڅې ملي ستراتیژي او دملت مټ غښتلی کوي نو همدا لامل دی چې په نړۍ کې زیات شمېر سیاسي رژیمونه د خپل ملت د پایښت ، پرمختیون او سوکالۍ لپاره د ډېرو نورو دلایلو تر څنګ دا ستر عامل تل په پام کې نیسي او هڅه کوي تر څو داسې چارې ترسره کړي چې له پورته یادو شوو ټکو سره په ټکر کې نه وي، زموږ په هېواد کې هم د افغانستان له جوړېدو راهیسې بیا د غوایي ترکودتا پورې اکثرو حکومتونو خپل سیاسي تګلوری څه ناڅه د ملي ستراتیژۍ پر بنسټ عیار کړی وو. خوله بده مرغه چې دغوایي له کودتا را وروسته پېښو دا وښوده چې زموږ د حکومتونو د کړنلارو ډېره برخه د ملي پر ځای په پردیو اصولو باندې ولاړې وې.

هر هېواد خپل کلتور او تاريخ لري او هغه ملتونه چې په ملي روحيه روزل شوي وي تل خپل کلتور او فرهنگ پالي او د پرديو کلتورنو پالل د ځان لپاره عار گڼي نو دغه ټکي ته په پام سره بايد ووېل شي چې افغاني ټولنه يوه اسلامي او دوديزه ټولنه ده چې د اسلامي رواياتو تر څنگ ښکلي، ملي دودونه هم لري چې دغه دودونه ددغې ټولنې د ملي کلتور شمزۍ جوړوي چې د افغانستان هر سياسي بدلون بايد دغه اصل ته پاملرنه وکړي او ددغه کلتور په لا بډاينه کې خپلې هڅې ونه سپموي. ډېره به يې نه شاربو او رابه شو د هېواد ددغه حساس پړاو په کلتوري برخه کې د افغان حکومت د کلتوري چارو د سمبالوونکو دندو او مسؤليتونو ته:

اوسنى افغان حکومت چې د بن د تړون د درې گوني پړاو ورستۍ برخه ده چې د خلکو د آزادو او مستقيمو رايو په پايله کې رامنځته شوې چې دنده يې د خلکو او ولس چوپړ ده او حکومتي چارواکي هم شپه او ورځ دا نغاره ډنگوي چې گنې زموږ حکومت د ولس د رايو په پايله کې رامنځته شوى او هڅه کوي هغه څه ترسره کړي چې خلکو او ولس ته دخوښې وړ وي. په رښتيا هر هغه سياسي نظام ته چې ولس رايه ورکړې وي او د ملت له خوا ټاکل شوى وي نو دغه ډول نظام ته وايي د خلکو حکومت او دغه بهير ته بيا وايي ولسواکي. ځکه ولسواکي د هغه حکومتي سيستم نوم دى چې موخه يې په يوه ټولنه کې د همغې ټولنې د وگړو دوديزو، مذهبي او اقتصادي ارزښتونو په رڼاکې د ولس د ټولنيزو چارو تنظيمول دي نو کله چې ديوه ولسواک نظام دنده د پورته ارزښتونو په رڼا کې د ولس چوپړ ده پوښتنه راولاړېږي چې آيا زموږ هېواد د کلتوري چارو سمبالوونکو هم د خپل هېواد کلتوري چوپړ ته ملا تړلې او که څرنگه؟

او که يې تړلې وي ايا رېښتينې او بريالۍ ده او که نه ؟ چې زه غواړم د خپلې ليکنې په لړ کې په لنډه توگه ځواب ورکړم او هغه دا چې :

د افغان حکومت د اطلاعاتو او کلتور د څانگې چارواکو سره لدې چې تل افغان کلتور ته د چوپړ نارې وهي خو داسې برېښي چې د دوى دا نارې ريښتينې نه دي ځکه د کابل په ښار کې ورستيو تش په نوم کلتوري هڅو دا په ډاگه کړه چې د افغان حکومت د دغې برخې چارواکي د افغان کلتور پرځاى پردي کلتور ته ژمن دي ځکه هغه څه چې دوى ورته افغان کلتور ته چوپړ وايي، له آره چوپړ نه بلکې ددغه لرغوني کلتور سپکاوى دى. افغان کلتور ته به

هغه مهال خدمت ترسره شي او هله به بډای شي چې د یوې ګډې ملي او اسلامي ستراتیژۍ پر بنسټ ولاړ وي له دې پرته به ټولې هڅې تش په نوم شعار وي او بس.

که چېرې موږ دهېواد په لر او بر کې د حکومت کلتوري سیاست ته ځیر شو نو راته جوته به شي چې له بده مرغه په هېواد کې یوه پراخه ملي او کلتوري ستراتیژي له سره شتون نه لري چې دهغې پر مټ د هېواد کلتوري سیاست طرحه شي د بېلګې په توګه که چېرې سړی د هېواد په مطبوعاتي ډګر کې د تلویزون، سینما، کیبل او .... خپورنو ته پام وکړي نو و بهویني چې لاتراوسه د اطلاعاتو او کلتور وزارت په دې نه ده بریالی شوی چې د یوې واحدې مطبوعاتي او کلتوري ستراتیژۍ په رڼا کې د هغوی د خپرونو لپاره کړنلاره جوړه کړي.

همدا راز د کابل ښار وروستیو کنسرتونو دا وښوده چې له بده مرغه د هېواد ددغې څانګې سمبالوونکو لاتراوسه د خپل هېواد د تاریخ او په ځانګړي توګه د غه اوسنی حساس پړاو نه ده درک کړی زما په اند که چېرې هغوی د خپل هېواد د تاریخ ځینې حساسې شېبې وپیژني هېڅکله به دا ډول کړنو ته اجازه ورنه کړي څکه دغه کنسرتونه او هغو ته ورته ځینې نورې تلویزوني او سینمایي خپرونې خو آن دکابل د ښار په پنځه کیلومترۍ کې هم ناشوني دي.

همدا راز د چاپي خپرونو څارل او تنظیمول د اطلاعاتو او کلتور وزارت بله هغه ستره دنده ده چې باید ورته پاملرنه وکړي چې له بده مرغه دغه وزارت په دې برخه کې هم پاتې راغلی څکه یوازې په کابل ښار کې داسې چاپي رسنۍ تر سترګو کېږي چې چلوونکي یې پرته له دې چې په هېواد کې دمطبوعاتو نافذ قانون ته درناوی وکړي هرڅه یې چې خوښه شي هغه لیکي چې د هغوی ګڼ شمیر لیکنې خو آن زموږ ملي او اسلامي ارزښتونو او ملي یوالي ته سپکاوی وي لکه د تیر کال په ورستیو کې د مجله زن په مجله کې د ارتداد په هکله د محقق نسب لیکنه او دځینو تش په نوم سیاسي ډلو ټپلو اړوندې خپرونې چې داسې لیکنې په کې تر سترګو کېږي چې د هېواد اساسي قانون، ملي ترمینولوژۍ او په هېواد کې د میشتو ورونو قومونو دغوښتنو خلاف وي. دا چې د کابل په ښار کې چې داطلاعاتو او کلتور وزارت تر ستوني لاندې دی، د مطبوعاتو ور کې دا حال دی نو دولایتونو چې ډېر خو یې آن په سلګونو کیلومتره د نوموړي وزارت له ودانۍ څخه واټن لري، څه حال وي نو پورته او ځینو نورو هغو بېلګو ته په پام سره چې یادول یې په دې لیکنه کې اړین نه بولم، باید وویل شي چې زموږ د هېواد د

کلتوري برخې چارواکي باید دا ومني چې یا دوی افغان کلتور ته ژمن نه دي او که ژمن وي نو بیا یې په بډاینه کې پاتې راغلي ځکه افغان کلتور په هېواد کې د پلي کلتوري سیاست پر مټ نه بډای کېږي او نه پرمختګ کولی شي ځکه ددغه سیاست په پایله کې دی چې زموږ دهېواد دکلتوري پولو دروازې یې د ګاونډیانو او غیر ګاونډیو هېوادونو د کلتوري لاسوهنو پرمخ پرانیستې چې له مخې یې هره ورځ نوموړي هېوادونه د خپلو تالي څټو مټ په زرګونو مبتذل فلمونه ، کتابونه او ..... هېواد ته رادننه کوي چې له امله یې افغان کلتور ته ستر زیان رسېږي نو که چېرې د هېواد ددغې برخې مسؤل چارواکي دغې کلتوري ستونزې ته د افغانستان د ملي ګټو په رڼا کې جدي پاملرنه ونه کړي نو لرې به نه وي چې هېواد مو د نورو هېوادونو د کلتوري جګړې ډګر شي چې زیان به یې د تېر په څېر یوازې افغان ولس ته وي دا ځکه چې افغانان هر څه مني خو د دوی له ملي او اسلامي ارزښتونو سره جفا په هېڅ توګه نشي منلی نو ددې لپاره چې هم مو لال پلاس راوړی وي او هم مو یار نه وي خفه کړی نو حکومتي چارواکي او په ځانګړي توګه د اطلاعاتو او کلتور وزارت چارواکي باید د هېواد دغه نازک حالت ته په پام سره داسې کلتوري سیاست غوره او پلي کړي چې دهغه له مخې زموږ ملي او اسلامي ارزښتونه د پردي ناروا کلتور او دودونو څخه وژغورل شي چې په دې سره به یې هم د لوی خدای ( ج ) په وړاندې خپل مسؤلیت ادا کړی وی او هم به یې له ملت سره پخپلو کړو ژمنو عمل کړی وي په پای کې زه د یوه مسلمان او افغان په توګه حکومتي چارواکو ته وړاندیز کوم چې راځئ لکه څرنګه چې دعوی کوو په همغه ډول د خپل وران هېواد د هرې برخې ودانولو ته د خپلو ملي او اسلامي ارزښتونو په رڼا کې ملا وتړو او هڅه وکړو تر څو پخپلو کړنو سره لومړی د خپل خدای (ج) رضا او وروسته بیا دخپلې ځورېدلې ټولنې د وګړو رضایت ترلاسه کړو.

# گل دل



زه گل دل د پردل زوی د تاجبکی په کلي کې په ۱۳۲۲ هـ ل کال کې زېږېدلی یم ابتدايي زده کړې مې له اول ټولګي نه تر شپږم ټولګي پورې د سیدآباد په مکتب کې پای ته رسولي او په پای کې دغازي لیسې د دولسم ټولګي نه فارغ شوی یم او وروسته د کانکور له آزموینې څخه د طب پوهنځی ته بریالی ، خو بیا د وخت د صدراعظم (سردار محمد داود) لخوا د پوهنې حربي پوهنتون ته او په ۱۳۴۰ هـ ل کال کې له حربي پوهنتون نه د دوېم برید من په حیث فارغ او د کندهار قوا کې مقرر شوم. په ۱۳۴۵ هـ ل د کانکور له آزموینې څخه وروسته دوه کاله د زده کړې لپاره شوروي ته ولیږل شوم،او د زده کړې په پای کې بېرته په مهتاب قلعه کې تعین بست شوم، ورپسې د ۱۳۵۷ هـ ل کال په لومړۍ شپه د پلچرخي په زندان کې زنداني او د همدې کال په وروستیو شپو کې له زندان نه خلاص او ظلماً په جبري توګه د ۳۲ کالو په عمر

له اردو نه اخراج چې په همدې وخت کې زه پېښور ته ولاړم او هلته په جهادي نظامي پوهنتون کې د توپچي د مضامینو د استاد په حیث مقرر شوم او ورپسې کله چې گران وطن ته راغلم دلته د تنظیم له خوا د ډگرجنرالۍ رتبه راکړل شوه خو کله چې طالبان راغلل زما دا رتبه ونه منل شوه او زه بې برخلیکه پاتې شوم چې په پایله کې د سیدآباد د عالي لیسې د محترمو آمرانو له خوا د سیدآباد په عالي لیسه کې د معلم په حیث مقرر او اوس د برحاله معلم په حیث د معلمي سپیڅلې دنده سرته رسوم او د دولسمو ټولگیو د فزیک او مثلثاتو درس ورکوم او تقریباً زیات وکم سل شعرونه لرم .

د کلام نمونه:

د یوه شهید په مزار

وخت مازدیگر ؤ چې ناڅاپه یوه ښکلا راغله
زما د نظر تر سلسلو سپینه رڼا راغله
ورته په ځیر شوم ښکته پورته مې نظر وکاوه
د خیال دنیا کې یوه عجبه تماشا راغله
ماو یل ناڅاپه شوه سپوږمۍ د څوارلسمې ښکاره
د قبر خوا ته آهسته مسته لیلا راغله
د پښتو ننگ او غیرت رنگ یې کړې جلوې پر تندي
پا ک دامني او صداقت کې یې رښتیا راغله
هک و حیران پاتې شوم پوه نه وم چې حال څه دی
د تصور بحر کې ډوب لویه سودا راغله
ورو ورو قدم سره قریب شوم د نازیینې پخوا
گیډۍ د گلو یې په لاس ورته مسکا راغله
گیډۍ د گلو یې نیولي وه سینې د پاسه
د ا حترام خمیده گي یې پاس پر ملا راغله

گیډۍ د گلو یې په ناز کېښوده قبر باندې
زما زړګي ته د پوښتنې تمنا راغله
په احترام مې د پوښتنې اجازت واخیسته
د ځواب د پاره نازنینې ته رضا راغله
ما ویل ننګینې خورې حال د ماجرا غواړم
ځکه هیله د دې خبرې مې له تا راغله
پښتنې پورته لوړې سترګې کړې پخوا زما
د ناز خندا یې په سرو شونډو یو ځل بیا راغله
زه «رحمت یار» ځیر شوم دا پیغلې نازپرورې ته
چې یې خبرې کړې آغازې حیرانتیا راغله
ویل دا قبر کې چې ګورې زلمی ورور دې زما
د غلیم جنګ کې شو شهید د رب قضا راغله
د احترام لاس په نامه ورته بار بار اېږدم
دا سره ګلونه د شهید ورور په مزار اېږدم

# فضل الربي ( احمدي )




نوم مې فضل الربي او تخلص مې احمدي د معلم گل احمدخان زوی او د محمد وصیل خان لمسی یم ، د وردگو ولایت د چک د ولسوالی دچک د کلي اوسیدونکی یم. چې په ۱۳۶۴ هـ ل کال کې په همدې کلي کې زېږېدلی یم او ابتدایي زده کړې مې د آبیدان د شهیدانو په ابتدایي ښوونځی کې او منځنۍ زده کړې د حضرت عمرالفاروق په عالي لیسه کې په ۱۳۸۵ هـ ل کال کې پای ته د رسیدو په حال کې دي. خو د تعلیم په دې دوره کې د یو لړ ستونزو له کبله مې ونه شوای کړای چې په مسلسله توگه خپل تعلیم ته دوام ورکړم نو ځکه یو څه وخت ځنډ په کې راغلی دی .

تقریباً درې کاله کېږي چې شعر لیکم چې له ۱۳۸۲ هـ ل کال راپدیخوا د شعر په لیکلو توانېدلی یم خو له شعر سره مې له کوچنیوالي څخه ډېره مینه وه او همیش به مې

شعرونه لوستل، خو اوس مهال زه داسې معشوق نه لرم چې د شعر ليکلو ته مې تشويق کړي او زما د شعرونو کمۍ ( غلطۍ ) را په گوته کړي تر څو مې شعري استعداد زيات شي او زما شعرونه اصلاح او نيمگړتيا نه خلاص شي .

وايي چې :: ((خپل عيب د وليو کت دی)) نو ماته هم په خپل شعر کې چې کومه نيمگړتيا ښکاريږي هغه اصلاح کوم خو بايد زما شعر د بل چا په نظر هم نيمگړتيا ونه لري . تقريباً د سلو په شاوخوا کې مې شعرونه ليکلي دي. چې غير له غزل څخه مې زيات شمير آزاد شعرونه او لنډۍ هم ليکلي دي چې مجموعه به يې ۱۲۰ ته رسيږي او د لنډيو خو تعداد په دقيق ډول نه دی معلوم.

د کلام بېلگې:

پرون په سترگو کې مې راغله ستا رنگينه څېره
درته چې ځير شو ښکاريدله ستا غمگينه څېره

زمور د باغ په شنه چمن کې هلته
زما په مخ کې وه ولاړه ستا لمرينه څېره

جانانه تا ته وايم تا يادوم
ومې ليدله په رښتيا ستا نازنينه څېره

احمدي غوښتل درته څه ووايي گرانه اشنا
شوله په سترگو کې مې ورانه ستا حسينه څېره

غزل

پوی شولم اشنا پر ما مين ديه
ښکلی دی ښايسته دی خو غمجن ديه
ما ورسره مينه خو ده ناز کاوه
اوس نو چې اظهار کړي دروغجن ديه

اور زما د میني هم پرې بل شو لو
سوځي په کې ژاړې ارمانجن دیه
بیا به ترې خلاصون څنګه پیدا کاندي
ښکلی چې د عشق په رنځ تبجن دیه
وایه اوس خبر له زخمي زړو چې شوې
زړه کې د مین څومره خوږلن دیه
ما له بې وفا بې وفا مه وایه
عشق د زما زړه کې څوکلن دیه
اوس نو چې مې خولې ته خندا نه راځي
شوی مې د زړه ښکلی ګلشن دیه
نور نو به له مینې نه څه نه وایې
رنګ د احمدي غریب وطن دیه

غزل

کله مې عشق کله آرمان بدل شي — کله مې خیال کله جانان بدل شي
د میني وریځو کې مې لار ورکه کړه — کله سپوږمۍ کله آسمان بدل شي
د غریب یار کوڅې ته خیال کې چې ځم — کله غریب کله په خان بدل شي
په مسکېدو یې شونډې ګل شي مګر — کله غوټۍ کله ګلان بدل شي
د احمدي زړګی چې نه رغیږي — کله قسمت کله یاران بدل شي

د ستونزو له کبله مې شعرونه په چاپ نه دې رسیدلي او تراوسه پورې مې په خاص ډول نوم هم د شعرونو د ټولګې لپاره نه دی غوره کړی.

# فضل محمد ( قیومي )




فضل محمد (( قیومي )) دِ قیوم جان زو ی په ۱۳۵۳ هـ ل کال کې د عرب خیلو په کلي کې مې زوکړه شوې ده .

په پښتو ژبه کې تر دوو سوو عنوانو پورې په هر فورم کې شعرونه لیکم چې له هغې جملې څخه مې ځینې په مجلو او اخبارونو کې چاپ شوي او خپاره شوي دي ، خو د اقتصادي ستونزو له امله مې کومه شعري ټولګه نه ده چاپ شوي او ټول لیکلي شعرونه مې د کاغذ پرمخ پاتي دي.

حماسي شعر

کاشکې يو ځل بيا زه د غيرت توره تر ملا کړمه
رنګه امريکا کړم، لاس ترزنې برتانيا کړمه
دا به مې غيرت وي چې د پلار په شان غازي شمه
بيا کفر والحاد ته محمدجان غازي پيدا کړمه
رنګه مې نقشه د روس کړه هغه مجاهد يمه
تا که تاريخ هېر وي زه به يې تا ته برملا کړمه
ما نه د نفاق او د شقاق لاسونه لنډ نيسه
زه هغه منصور يم په قيمت د سر سودا کړمه
وپوښته کارمل د شاه شجاع ښاماران څه وايي
زر به بهرنيه تا دده په شان رسوا کړمه
ته که د نجيب په شان د بل په لاس ترشا کړمه
زه د ملا مشک توره تراوسه ځان سره ساتمه
نن ته ليونی يې تا به هم خورجا خورجا کړمه
زه «قيومي» ترس نه کړم په ډاګه لفظ وايمه
ته که ساميري يې زه به ځان درته موسی کړمه

# گل رحمان رحماني

د تل پاتې ښکلا د ځښتن په نو

مور مې وايي چې ته د پسرلي په يوه باراني ورځ دنيا ته راغلى يې نور به نو د ښکلا مالک ته مالومه وي خو طبيعت مې آن له ماشومتوبه د پسرلني باران، د غرنيو شرشرو او د للمو د فصلونو د ښکلا مريد دى، که څه هم چې هغه وخت د وطن له ځمکو د مينې پسرلى راټوکېدل ، غرونو، شود يارو او خوړونو ته د غاټولو کډې را روانې وې خو له آسمانه ورباندې اورونه او بمونه ورېدل، د کلي زلمو اوړو ته ټوپکونه اچولې وو او د غازيانو په ډله کې د سره ښامار مقابلې ته روان وو تر څو د مومن خان ياد تازه کړي د چينو او شر شرو اوبو څه چې د باران څاڅکو هم د وينو رنگ اخيستى وو بس د همداسې حالاتو تابلوگانې او وينو ته په ورته رنگ کښل شوي انځورونه دي.

هو شل پسرليه وړاندې چې ۱۳۶۵ هـ ل کال راځې د ودرگو ولايت د چک په ولسوالى کې زېږېدلى يم، پلار مې ارواښاد مولوي عبدالرازق گل رحمان نوم راباندې ايښى او پوره نوم مې گل رحمان رحماني دى. لمړنۍ زده کړې مې د الجهاد منځنۍ مې د چک روزنتون او د ليسې زده کړې مې د عمرفاروق رض په عالي ليسه کې کړيدي چې په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې ترې فارغ شوى يم. د اووم ټولگې څخه مې شعر ليکلو، مشاعرو او ادبي بنډارونو ته تلم او بېلابېلو خپرونو سره د همکارۍ تر څنگ مې د ميدان وردگ ولايت د راډيو ټلويزون په اداره کې د وياند او اداري مدير، د ملي هدف اونيزې خبريال او همداراز د چک وردگ روزنتون د فرهنگي چارو مسؤل او د ادبياتو د ښوونکي په توگه دنده اجرا کړې د خپلو درنو ملگرو په همکارۍ د چک ادبي بهير کارونه هم په مخ وړو خو په دې وختو کې يو څۀ ورځخه

لرې شوی یم او په ننګرهار پوهنتون کې د ښوونې او روزنې پوهنځی د پښتو ادبیاتو د څانګې د لمړي ټولګي محصل یم.

په درنښت
ګل رحمان رحماني
۲۲/۷/۱۳۹۸۵

د کلام بېلګې:

گلدان

د زړګي د يخ وهلي ګل
ګلدان مې
ستا د سترګو
د هنداري
مخ ته کېږده
ګوندې وي
د نظر لمر دی
په کې سا
د ژوندون پو کړي

۱۳۸۵\۵\۳ ننګرهار

پال

ستاد کلي په کوڅه کې
هغه سترې بنګړیواله
په مخ راغله
ویل یې راشه
چې دې پال وګورم څوانه

ما ویل نشته
په ورغوي کې مې کرښې
د ټوپک موټې له ځانه
سره وړي

۱۳۸۵\۳\۱۰ چک

غزل

تا ژړل ستا په سلګیو باران راغی
ګوره بیا په شنو غونډیو باران راغی
دا د کوم غاټول دعا کړه خدای قبوله
شین اسمان دې په للمیو باران راغی
د ماشوم شپونکي شپېلۍ سندرې بس کړې
د کوچیانو په کېږدیو باران راغی
لونګینې وږمې ګرځې په سیند غاړو
د ګودر په جینکیو باران راغی
خدایه کله به دا زیری په ما وشي
په وطن دې د خوښیو باران راغی
ډلې ډلې د ځنګل په لوري ځغلي
شنه صحرا کې په هوسیو باران راغی
ښايي یو په کې زما مساپر یار وي
په څو سترو لارویو باران راغی

۱۳۸۲\۷\۸ چک

باران

که پسرلی راغللو

ته له بارانه مخکې
د مساپرو هديرې ته راشه
په خړپړ قبر مې کړه تويې
ايله دومره اوښکې
چې مې د شناختو له بيخونو
سره ګلان راووځي

اثار:

| | | |
|---|---|---|
| ۱- سانده | (شعر) | چاپ |
| ۲- زه او ته چې ماشومان وو | (شعر) | ناچاپ |
| ۳- د هډوکو غاړکۍ | (لنډې کيسې) | ناچاپ |
| ۴- جيلوان | (ناول) | ناچاپ |
| ۵- د ملنګ هنداره | (شعر) | ناچاپ |

آزانګې (لنډه کيسه)

د اوږده ټولګي درې واړه کړکۍ خلاصې وې او نرم باد په کې په آزاد ډول چلېده کړکيو ته نږدې ونې هم ډېرې خوشحاله معلومېدې چې باد يې شنې څانګې يوه بله خوا په ناز ناز اړولې د مرغيو چونا شيبه په شيبه زياتېده له کله خو به سپرلنۍ نرم نسيم له نږدې فصلونو څخه د ګلونو داسې ښکلې بوی تر کړکيو را دننه کړ چې د سړي دماغ به ورسره تازه شو.

تر اوسه درسي ساعت نه ؤ پيل شوی د ښوونځی د سپورټ په ميدان کې د واليبال ګرمه لوبه روانه وه، په ميدان کې سپينو تازه ليکو داسې ښودله چې د زده کوونکو تر مينځ کومه سپورټي مسابقه ده. د سپورت د ميدان ترڅنګ په شنه باغ کې هم د زده کوونکو شورماشور وو چې دې ټولو ننۍ ورځې ته زياته ښکلا وربښلې وه او دا سې مې انګېرله لکه ما چې بله دا ډول ورځ په دې ښوونځی کې نه وي تېره کړې، هرڅوک خوشحاله مالومېدل، هرشی ښيل خوند کاوه، زړه مې غوښتل لکه مرغۍ والوزم او د ښوونځی د باغ په څانګو څانګو

وگرځم د سپرلنۍ سهار سره مې هسې هم بې کچې مينه وه څو گړۍ همداسې په دې خيالونو کې غرق وم چې د چپړاسي ماما د شپېلک غږ زما د خيالونو لړۍ پرې کړه.
د زده کوونکو غالمغال غلی شو، تر گڼو ونو لاندې لين ودريده، سرښوونکی صيب چې لښته يې په لاس کې وه خپلې خبرې پېل کړې ډېر وغږېده، د وينا په اخير کې يې خبرې لږ غوندې نرمې کړې
زما گرانو ورونو !!
تاسې د خپل هېواد، د خپلې خاورې، د خپلې ټولنې راتلونکي جوړونکي ياست! تاسې يې چې يو وخت به ددې خاورې مشري په غاړه لرئ، تاسې به بيا د وطن نور بچيان تربيه کوئ، دا جنگ ځپلی هېواد يوازې ستاسې کار او زحمت ته اړتيا لري.
ورونو!!
د خپلې خاورې خدمت په زده کړه سره کولی شئ نو د وخت څخه سالمه استفاده وکړئ او بې ځايه مه گرځېږئ، د سرښوونکي دخبرو په خلاصېدو د تراني گروپ هماغه ترانه چې زما به ډېره خوښېده د لين په سر زمزمه کړه :

دا زمونږ زيبا وطن دا زمونږ ليلا وطن
دا وطن مو ځان دی دا افغانستان دی

د ترانې په خلاصېدو ټول زده کوونکي خپلو ټولگيو ته لاړل زه هم د خپل ټولگي په لمړي قطار کې کېښناستم د ټولگي ور خلاص او پورې کېده، تراوسه مې ټولگيوال رانتوتل په څو دقيقو کې ټولگی د نور کله په شان ډک شو اوس د ټولو سترگې د وره په لور اوښتې وې او د ښوونکي د راتلو انتظار يې کاوه، ځينو يو د بل سره سترې مه شې هم کول، لږ شيبه پس د وره تر شا د چا د قدمونو ښکالو تر غوږ شوه دوه ځله د وره ټک ټک جگ شو او بې له ځنډه د کيميا ښوونکی رانننوتلو، د ټولگي کپتان (ولاړ سئ) ووېل ټول د احترام په خاطر جگ شو، ښوونکی د پخواني عادت په څېر مخامخه څوکۍ ته ورغی ټولو ته يې سترې مه شې ووېل او په چوکۍ کېښناست، حاضري يې چې واخيسته د تختې مخې ته ورغی او په ليکلو لگيا شو، لمړۍ يې بسم الله وليکله او بيا

مضمون: عضوي کیمیا
ټولګی : دولسم الف
ساعت : اول
وروسته یې ماته اشاره وکړه.
شاباس نوی درس د کتاب له مخې ووایه، پاڅېدلم درس مې وویلو او بېرته کښیناستم ، درسي ساعتونه یو پر بل پسې ډېر ژر تېرېدل عجیبه خبره دا وه چې هر ښوونکی به د درس په اخیر کې دا خبره کوله : دا هېواد باید تاسو جوړ کړئ ، ستاسې د ځوانو متهو زور ددې لپاره پیدا شوی چې دا وران وطن د کنډوالو په ابادولو کې اوبه شي.
د هغوی دا خبرې نوي نوي ښوونکو به هر وخت راته دا نصیحتونه کول. شپږم ساعت ؤ هغه هم جغرافیه چې په کتابونو کې بده ایسېده او په ساعت کې به یې هر وخت خوب راته، ځکه خو اوس هم شیبه په شیبه خسته کېدلم د ښوونځی سهارنۍ شورماشور اوس یوې ښکلې چوپتیا خوړلی ؤ ، د ټولګي ترڅنګ په ونو کې مرغۍ نه ښکارېدې، پاڼې یې تاوده لمر مړاوې کړې وه، د خوب اوږدې ټالۍ وړی وم چې ښوونکی له غوږه کش کړم، پاڅه !
پورته مې ترپ کړل سترګې مې په مخامخ ودانۍ ولګېدې هماغه د تهران ښار وو د خاورو او ګاټو په منځ کې مې د کولنګ لاستی له موټې خطا شو غوږ مې د ښوونکي په ځای زما د ایراني صاحب کار په لاس کې وو د هغه دې خبرې مې تر ډېره په غوږ کې ازانګې کولې « اینجا محل کار است ، محل خواب گاه نیست »

# محمد آصف (غمگین)




زما نوم محمد آصف د پلار نوم مې عزیز خان د ی او غمگین تخلص کوم د اوسیدو ځای مې د چک په ولسوالی کې د چک تاریخي اولرغونی کلی دی . تر شپږم ټولګي پورې مې زده کړه کړې او نورې زده کړې نه لرم او په پنځلس کلنۍ کې مې په شعر ویلو پیل کړی دی خو د جهاد په وخت کې یانې کله چې د روس سرو لښکرو زموږ په گران هېواد یرغل وکړ او زموږ غیرتي ولس دهغه په ضد جهاد پیل کړ نو ما هم زیات شعرونه د مجاهدینو د حماسو او اتلولیو په باره کې،د شهیدانو په ستاینه کې د روسانو او د هغه دمزدورانو په غندنه کې جوړ کړل او دهغه نه وروسته د خپل وطن او د خپلو خلکود ستونزو او مشکلاتو په باره کې ، د مشرانو د مسؤلیتو او بې پروایي په باره کې ما شعرونه ولیکل چې د اټکل له مخې به دوه درې سوه ټوټو ته رسیږي خو افسوس چې د هر چا هره ټوټه خوښه شوه رانه یې واخیسته او ویوړه یې، بې له

دې چې زه يې کومه فوټوکاپي ولرم زياتره لاس په لاس شول او کوم شی چې زما په لاس کې موجود دی که امکانات مې پيدا کړل زړه مې غواړې چې چاپ يې کړم او له خپله ځانه څخه يو يادگار پرېږدم انشاء الله تعالی.

د کلام بېلگې:

د کورني جنگ او جگړې غندنه

داسې رواني په هر لور به ويني سرې نه وی

که دغه جنگ او دا جگړې نه وی

نه به دا کونډې يتيمان وو زموږ

نه به بې پلاره ماشومان وو زموږ

نه به بې شمېره معيوبان وو زموږ

په مخ رواني دهرچا به اوښکې مرې نه وی

که دغه جنگ او دا جگړې نه وی

ولې به پاتي ؤ وطن زموږه

په هجرت ولې تلو هر تن زموږه

ځله کمپو کې ؤ مسکن زموږه

که مو کورونه په راکټو کنډوالې نه وی

که دغه جنگ او دا جگړې نه وی

نن به موږ ولې مزدوران وو د بل

په پردي ملک به نوکران وو دبل

د دروازې به خاکرويان وو د بل

که ورانې کړې موږه خپلې فابريکې نه وی

که دغه جنگ او دا جگړې نه وی

که خپلو مځکو ته وزگار وی موږه

مشغول په کښت او په خپل کار وی موږه

په خپل وطن په خپل دیار وي مورږه
بل ته احتیاج به مونږ هیڅکله د غلې نه وی
که دغه جنګ او دا جګړې نه وی
داسې بې علمه بې تحصیل به نه وو
په مخ د خلکو کې ذلیل به نه وو
ویده به مونږ په غوږ د فیل که نه وو
ټول به پوهان وو که مو سوې مدرسې نه وی
که دغه جنګ او دا جګړې نه وی
خلکو ته ګوره په آسمان کې ګرځي
په لروبر واړه جهان کې ګرځي
د بحر تل او کهکشان کې ګرځي
مورږه به شاته ټیل وهلې زمانې نه وی
که دغه جنګ او دا جګړې نه و ی
که مونږ په خپلو کې ټول خپل وی وروڼو
په محبت کې له یو بل وی وروڼو
د خدای د حکم څه منل وی وروڼو
زمونږ په سینه به د پردیو دا نیزې نه و ی
که دغه جنګ او دا جګړې نه و ی
راځئ چې پس له دې هوښیار شو واړه
روغې او سولې ته تیار شو واړه
له دې ګېلو بانو بېزار شو واړه
ټول به آرام وو که یو بل ته دا ګېلې نه و ی
که دغه جنګ او دا جګړې نه وی
مورږه درنې درنې حجرې لرو
هم دمشرانو مرکې لرو

نو د جنګ ولې تلوسې لرو
غمګینه سخته به وه هله چې جرګې نه وی
که دغه جنګ او دا جګړې نه وی

بل

د نوي ولسوال صاحب د هرکلي لپاره
مرحبا هر کله راشې په راتلو د یو خوشحاله
په خیر راغلې سترې مه شې محترمه ولسواله
ستا راتله دې مبارک وي ستا قدم دې بختور شي
ددې سیمې لروبر دې ستا له مخه منور شي
فیض د خیر او ښېګڼې دې هم ورسه هر چا له
په خیر راغلې سترې مه شې محترمه ولسواله
خدای دې وکا زموږ غمخور شې هرې ستونزې ته دې پام شي
په راتلو ستا آسوده زموږه دغه غریب قام شي
راته حل هر یو مشکل کړې رانه لرې کړې کشاله
په خیر راغلې سترې مه شې محترمه ولسواله
په سرک په خپله راغلې هیڅ حاجت د بیان نشته
ټول بندونه زموږ وران دي یوهم چیرته ودان نشته
د اوبو سیستم خراب دی نظر وکړه شاوخوا له
په خیر راغلې سترې مه شې محترمه ولسواله
انجیو ده که شرکت دی که څه نورې مؤسسې دي
نورو خواوو ته یې پام دی ترې نه هېرې زموږ قصې دي
ته یې دې خوا ته را پام کړه چې داسیمه شي سوکاله
په خیر راغلې سترې مه شې محترمه ولسواله
هره ستونزه زموږ حل شي منطقه مو شي آباده

دا نیکي به دې تل ساتو همیشه په زړه کې یاده
که سحر وي که ماښام وي دعاګانې به کړو تاله
په خیر راغلې ستړې مه شې محترمه ولسواله
او بل دا چې عدالت او هم انصاف دې خپل عادت کړې
اداري څخه دې لرې واسطه او هم رشوت کړې
نو که خدای کا ته به هم چېرې ونه مومې زواله
په خیر راغلې ستړې مه شې محترمه ولسواله
او هم دا چې شاګردان مظاهره کې وژل شوي
ډېر زخمیان دې په روغتون کې په مرمیو ویشتل شوي
ددې هم پوښتنه وکړه مور ځولۍ غوړو تاله
په خیر راغلې ستړې مه شې محترمه ولسواله
عدالت ته یې حاضر کړه په تلوار دا مجرمان
ددې جرم او جنایت په ښه ترتیب وکړه پرسان
نه به خلق څوک خفه وي نه قانون به وي پیماله
په خیر راغلې ستړې مه شي محترمه ولسواله
بس د خلکو دا غوښتنې د غمګین په خوله بیان شوې
څه چې غوارې د ولس په دغه شعر کې عیان شوې
نور به تاته توفیق غوارو له خالقه ذوالجلاله
په خیر راغلې ستړې مه شي محترمه ولسواله

# محمد مبارک (مایار)




نوم مې محمد مبارک ((مايار)) د پلار نوم مې سکندر او په ۱۳۲۷ هـ ل کال کې د وردگو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ په شيخ آباد کې زېږېدلی يم.
لمړنۍ زده کړې مې د سيدآباد په متوسطه کې او درحمان بابا د لېسې څخه فارغ او بيا مې د ادبياتو پوهنځی ولوسته، چې په ۱۳۵۳ هـ ل کال کې له نوموړې پوهنځی څخه په اعلی درجه فارغ او هلته تر ۱۳۵۹ هـ ل کال پورې د استاد په توگه په هغه پوهنځی کې مې دنده ترسره کړې او د پوهنيارۍ علمي رتبه مې هم اخيستې ده .
د کمونيستي انقلاب په دوره کې ۱۳۵۹ هـ ل کال په پای کې د پنځو کالو لپاره په پلچرخي زندان کې زنداني شوم. په ۱۳۷۵ هـ ل کال کې د ناروي په کميټه کې د غزني په ولايت کې د ښوونکي لارښود (ټيچر ټرينر) په حيث دنده ترسره کړې ده او په ۱۳۸۲ هـ ل کال د

شیخ آباد په لیسه کې د استاد په حیث او په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې ددې لیسې د مدیر په توګه
تر ننه پورې کار کوم.
۱- په ۱۳۵۳ هـ ل کال کې یو مونوګراف د ( وردګو د واده او مړې دودونه ) تر عنوان لاندې
لیکلی.
۲- د پوهنیارۍ علمي ترفیع لپاره مې ( د وردګو د قوم لهجوي توپیرونه له معیاري لهجې سره
) تر عنوان لاندې لیکلی چې چاپ شوی هم دی .

# محمد نعیم (معرفت)



زه محمد نعیم او تخلص مې معرفت دی، د وردګو ولایت د چک په کلي کې ۳۲ کاله وړاندې پیدا شوی یم. د لمړي ټولګي څخه تر دولسم ټولګي پورې مې زده کړې د حضرت عمرفاروق رض په لیسه کې ترسره کړې دي. په کال ۱۳۷۵ هـ ل کې مې د کانکور په آزموینه کې ګډون وکړ او ساینس پوهنځی ته بریالی شوم.

په کال ۱۳۷۹ هـ ل کې د کابل پوهنتون د ساینس له پوهنځی څخه په پنځمه درجه فارغ شوی یم. او اوس د چک وردګ په دارالایتام کې د ساینسي مضامینو د استاد په توګه دنده ترسره کوم.

د شعرونو بېلګې:
خدايه څنګه بې وفا شوه زما مينه
په ژوندون له ما جدا شوه زما مينه
د اوبو په ځای مې ويني د زړه ورکړې
اوس په تمه د بل چا شوه زما مينه
د ژوندون ترخې شېبې ما سفري کړې
افسوس بل ته په خندا شوه زما مينه
د مجنون او د ليلا داستان يې هېر کړ
وه هر چا ته تماشا شوه زما مينه
د معرفت د زړه آرمان به پوره نه شي
چې له سترګو يې پناه شوه زما مينه

## غزل

په دنيا کې زه تر ټولو خوار زار شوم
ستا په غم د عاشقۍ چې ګرفتار شوم
نه طبيب نه مې دوا نه مې علاج شته
تورو شپو کې ستا د زلفو چې حصار شوم
بل به مست په دې دنيا له مانه نه وي
ستا د شونډو په شرابو چې خمار شوم
نه نور ظلم نه زياتی په دنيا وينم
چې له خپل او له پردي ځنې بېزار شوم
د پتنګ په څېر د شمعې په لټون کې
ستا د عشق په اور ستي په سور انګار شوم
بل به هېڅ زما په مثل نادار نه وي
معرفت چې ستا د حسن خريدار شوم

# محمد شفیق



نوم مې محمد شفيق د عبدالطيف زوی په ۱۳۴۷ هـ ل کال کې د وردګو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ د دوآب کلي په يوه کليواله کورنۍ کې زېږېدلی يم. لومړنۍ زده کړې مې د تنګي په متوسطه کې ترسره کړېدي. د جهاد له پيل وروسته پېښور ته مهاجر شوی يم، هلته مې ثانوي زده کړې کړي او په ۱۳۶۷ هـ ل کال کې له شرعي او تربيوي دارالمعلين څخه فارغ شوی يم.

له فراغت وروسته مې دخپل اميد سره سم په ۱۳۶۸ هـ ل کال کې د تنګي په دره کې د لجنة الدعوه دخيريه مؤسسې په مرسته د لومړي ځل لپاره يوه ليسه جوړه شوه چې تراوسه هم د امام ابوحنيفه رح د لېسې په نامه سره يادېږي، په ليسه کې له څه مودې استادۍ وروسته مې په پېښور، کابل، کندز او وردګو ولايتونو په ځينو نورو سيمو کې مختلفې دندې

ترسره کړي، چې ټولې دندې د تعلیم او تربیې په چوکاټ کې وي. د ښوونکي، سرښوونکي، معاون، آمر او مدیر په توګه مې کار کړی دی.
له ۱۳۸۱ هـ ل کال راپه دېخوا د امام ابوحنیفه رح دلیسې د مدیر په توګه دنده لرم. د دارالمعلمین له دورې مې د لیکوالۍ لور ته هڅې پیل کړې، ګڼې مقالې، رسالې، مضامین مې ژباړلې ، لیکلي او راټول کړیدي، خو د شرایطو نه مساعدت، اقتصادي ستونزو، ناامنیو او کلیوال چاپېریال له امله مې کمې مقالې په مطبوعاتو کې چاپ شویدي. له ۱۳۸۰ هـ ل کال راپه دېخوا مې د شعر لیکلو سره مینه پیدا شوې چې زیات کار ته اړتیا لري.
په ژوند کې کومه اقتصادي لاسته راوړنه نه درلوده ، خو یوه سرمایه چې مې لاس ته راوړې او زه پرې ویاړم ، هغه دا چې د ملک په ډېر ستونزمن پړاو کې مې په سلګونو ځوانان د علم او کلتور په رڼا کې وځلول، تراوسه الحمدلله زما په لاس تقریباً (۷۰۰) تنه ځوانان له دولسم ټولګي څخه فارغ شوي، له (۳۰۰۰) څخه زیاتو شاګردانو مې د اقتصادي او ټولنیزو ستونزو له امله د دولسم ټولګي ته له رسیدو مخکې خپلې زده کړې نیمګړې پرېښې دي او همدا اوس هم (۱۵۰۰) تنه زده کوونکي لرم.

د شعر بېلګه :

خپل شاګرد ته !

| | |
|---|---|
| اې! زما شاګرده وروره | لږ وماته ته وګوره ! |
| ته زما د امید ګل یې | ته زما د زړه بلبل یې |
| تا ته کړم د ژوند کېسې مې | تجربې او خاطرې مې |
| لکه شمع درته سوځېږم | د څراغ غوندې بلېږم |
| تر څو ستا ژوند کړم روښانه | ستا راتلونکی په ښه شانه |
| چې بیا ته نیغ سم روان شي | د سیالانو د کاروان شي |
| غوږ شه ماته زما وروره | لږ خبره مې ده نوره |
| ګوره! ته که کوچنی یې | هم که ژنی یا زلمی یې |
| تاته پاتې دا نړۍ ده | د سیند منځ کې دا بېړۍ ده |

درچاپېر دې رقيبان دي | ښه هوښيار ټول غليمان دي
غوارې ستا ژوندون اسير کړي | په جالو کې دې راګير کړي
هسکه غاړه ته روان شه | هم په غرو او بيابان شه
دې وطن ته ښه خادم شه | د مظلومو ښه حاکم شه
د آيين کوه ساتنه | د خپل دين کوه پالنه
پيدا شوی مسلمان يې | هم په ختمه ته افغان يې
دې نړۍ کې ته پښتون يې | نن راګير په لوی آزمون يې
پام کړه ګوره خطا نه شې | په ذلت هېڅ رضا نه شې
دا وطن ته ښه سمسور کړه | موږ نه لېږې نور پېغور کړه
که قبول دې زما وصيت کړ | هم منظور دې دا دعوت کړ
بيا به ته هم ميرويس خان وې | هم بابا او هم جان خان وې

زما ليکلي آثار متاء سفانه چې تراوسه چاپ شوي نه دي او يواځې يو کتاب مې تر چاپ لاندې دی چې انشاء الله ژر به يې لوستونکو ته وړاندې کړم، نور ليکلي آثار مې چې ځينې د چاپ لپاره تيار او ځينې منظم نه دي په لاندې ډول دي:

۱- د ځوانۍ منې (کتاب): د روسانو د يرغل د کلونو د سترګو ليدلي حالات او ناخوالې.
۲- ښوونکي ته!: (کتاب) ژباړه
۳- د کورنۍ د ورانېدو (۷) عوامل د زيادت سره (کتاب) ژباړه.
۴- د ميراث پښتو کتاب.
۵- عسيويت: تاريخ، عقيده او شريعت، (کتاب)

لنډه کيسه:

بس بي بي خوارکۍ په ډېره منډه راورسيده، خدای خبر چې دا اوږده لاره به يې څنګه وهلې وي، نړۍ يې هېره وه، يوازې د چا په ليدو به يې د خبرې پوښتنه کوله، خو هېڅا هم ځواب نه ورکاوه، خو د هغې زړه خبر وو، هغه پوهېده چې تل به يې زړه له دې ظالم کلي ورتول شي، د

کلا په مخ د ښځو او نارینه ؤ ګڼه ګوڼې لاوارخطا کړه ، د کلا د مخ خلک ځینې ورته راروان او ځینې یوې بلې خواته خواره شول، په نارو نارو ، د کلا مخ ته ننوته، څو ګامه وړاندې نه وه تللي په یوه چا یې سترګې ولګېدې چې زوړ څادر پرې خور ؤ، د څادر پیڅکه یې پورته او په لیدو یې د خدای شکر ادا کړ ، هغه یې په داسې حالت کې تر څنګه کښیناسته چې په سترګو کې اوښکې وچې وې، حیرانه یې یوې او بلې خوا کتل، د ولاړو کسانو له سترګو د اوښکو سیلابونه روان ؤ خو بیا یې هم خوارکۍ ته په صبر ډاډ ورکاوه، هو د بس بي بي خوارکۍ د لور ژوند همدومره ؤ، دا دهغې د ژوند اتلسم پسرلی ؤ چې دنیا یې ددې نړۍ ظالمانو ته په میراث پرېښوده، د هغې په ژوند کې له هغې ورځې خزان راګډ شو کله یې چې پلار له دې نړۍ سترګې پټې کړې، کاشکې چې ورور یې درلودی چې د ظالمو انسانانو د ظلم څخه یې ساتلې وی، د ماشومتوب ناخوالو یې د بدن هډوکي خوړلي ؤ، زړو شلېدلي ، خامو او چاودو پښو یې د یتیمتوب زیری ورکاوه، دا خترونو او ودونو په ورځو بۀ په خوارکۍ د غم شپه راخوره وه، خو سیلۍ وهلي مور به یې بیا هم ډاډ ورکاوه، دهغې بخت هغه وخت د ژمې سیلو وسیځه کله یې چې ظالم تربور د میراث لپاره خپل هغه زوی ته په نکاح کړه چې هغه ورسره له ماشومتوبه کینه لرله، د ماشومتوب ستونزې یې د خسر او خواښې د کور په کړاوونو له یاده ووتې. هغه اوس د کور ښځه نه بلکې د یوې مینځې ښه غوره کړه ، هغې په کور کې خاوند نه بلکې یو دښمن درلود ، چې یوازې د هغې په وینو به یې تنده ماته شوې وی، خو هغه مهال پرې د مصیبتونو سیلاب راغی کله یې چې د بنې دسمال کورته رادننه شو، بنې ته هم ډاډ ورکول کېده چې هر څه به یې مینځه ورته کوي، خو د واده شپه لاتېره نه وه چې د بس بي بي د لور جنازه د نامعلومو عواملو له امله خلکو ته ننداره ته کېښودل شوه.

# محمد اورنگ (مختار)




محمد اورنگ ((مختار)) د حاجي محمد اسماعيل زوی په ۱۳۵۷ هـ ل کال کې د وردګو ولایت د چک ولسوالی د نهه برجه په خانانو کلي په یوه دیندوسته کورنۍ کې مې دې دنیا ته سترګې غړولي دي.
د هجرت په دوران کې په ۱۳۷۳ هجري لمریز کال کې د حضرت بلال رض د I.R.C لیسې څخه د فراغت برې لیک ترلاسه کړی او په همدې کال کې د دعوت او جهاد پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی ته بریالی شوم. خو د ۱۳۷۵ هجري لمریز کال د تلې (میزان) په شپږمه نیټه د طالبانو په واسطه د کابل د نیولو له امله له هېواد څخه بهر ته ولاړم او هلته مې د اسلامي زده کړو ترڅنګ په کلتوري چارو هم بوخت شوم او په ۱۳۸۱ هـ ل کال کې مې اسلامي زده کړې هم بشپړ کړې . اوس مهال سره ددې چې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پښتو څانګې محصل

یم د نورو آزادو لیکنو ترڅنګ د هېواد ، انیس او راه نجات ورځپاڼو سره همکاري لرم چې دتیرو دوو کلونو راهیسې مې په نومړو ورځپاڼو کې په سلګونو څېړنیزې، سیاسي او ادبي مقالې خپرې کړېدي.

د نثر تر څنګ شعر هم لیکم خو نثر مې د شعر په پرتله ځواکمن دی او د «خزان وهلو ګڼاګو» په نامه د لنډو کېسو یوه ټولګه لیکلې ده چې ډېرې کېسې مې ورځپاڼو او مجلو له لارې تر هېوادوالو رسولي دي د لنډو کېسو دغه ټولګه چې له نوم څخه یې ښکاري د هېواد د مظلومو نجونو او ښځو حال بیانوي چې د جګړې او افغاني دودونو ښکار شوي دي .

د لنډو کیسو او شعرو نو ترڅنګ د طنز او ډرامه لیکلو سره هم ډېره مینه لرم چې دهېواد د روانو ستونزو ډېرې پېښې د طنز له لارې خپروم، د یادونې وړ ده چې په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې په ګویته انستیتوت کې د «ازدواج اجباري علیه خوردسالان» تر سرلیک لاندې په پښتو ژبه یوه (۱۱) مخیزه ډرامه ولیکله چې تر ټولو یې لومړی مقام ترلاسه کړ .

د خزان وهلو ګڼاګو له ناچاپ اثر څخه مې یو ه تازه لیکلې کیسه د بېلګې په توګه تاسو ته ډالۍ کوم چې د روان کال د تلې په ۱۳ مه نېټه د هېواد ورځپاڼې په پنځم مخ کې یو ځل چاپ شوې هم ده .

یتیمه نجلۍ :

د شپې دوې بجې وې چې فرښتې خپلې مور ته وویل : مورجانې! مورجانې ! ناروغه یم ګېډه مې سخت درد کوي مور: خیر دی لورې مه ژاړه زه به درته ترخه په اوبو کې واچوم هغه به وخورې روغه به شې، هله ژر ژر مورې مړه شوم ډېر تکلیف لرم، ته ودرېږه لورې چې زه ډیوه روښانه کړم آه ، رښتیا په ډیوه کې خو تیل نشته څنګه به یې په دې تیاره کې پیدا کړم نیمه شپه ده ، څه وکړم خدایه ! مجبوره یم چې د کوم ګاونډي دېوال ور وټکوم او تیل ترې وغواړم تر څو مې د لور غم وخورم، هی هی په دې توره شپه کې اوس له چا څخه سوال وکړم که پلار یې ژوندی وای نو هرو مرو به په کور کې اوس دومره تیل ؤ چې ډیوه مو پرې روښانه کړې وای، بیا یې په ورو له ځانه سره وویل : سپوږمۍ خو هم په نیمایي اسمان کې ده ښایي همدا اوس شپه

نیمایي شوي وي، کاشکې مو په کور کې یو ساعت (گړۍ) درلودای چې د وخت پته مو پرې
معلومه کړې وای، نه پوهیږم چې شپه لږ پاتې ده که ډېره ؟
مورې! هېڅ طاقت مې نه کیږي مړه شوم هله یو څه ، مور مجبوره شوه او په سینه کې یې د
زمري زړه کېښود د ښي لورې د گاونډي د کور دېوال یې ور وټکاوه له ځانه سره یې وویل
گونډې وي چې د مرجانې زړه راباندې وسوځي او یو څه تیل راکړي خو بیا په زړه کې پښېمانه
شوه او له ځانه سره یې وویل اخر زه خو ښځه یم څنگه په دې نیمه شپه کې د گاونډي دېوال ور
وټکوم! د مرجانې تر غوږ د دېوال غږ شو په خاوند یې غږ وکړ سړیه ! او د جمیل پلاره ! هله
څوک دېوال ټکوي ، د نجلۍ مور په غلي اواز وویل : مرجانې زه یم، له خوبه مې ویستلې ،
خدای دې ما بلا ورکه کړي څه وکړم بله چاره مې نه وه لور مې سخته ناروغه ده د نجلۍ
ناروغۍ او سخت فریاد دې ته اړ ویستم چې یو څۀ تیل درڅخه وغواړم، او رښتیا په کور کې
خو گوگړ هم نشته یو اورلگیت مې هم په کار دی، مرجانې توره کونډې ته د تیلو له بوشکې
څخه د هغې ډیوه ور ډکه کړه، گوگړ یې هم په لاس ورکړ، یتیمي نجلۍ په وچ ډاگ باندې
سپېرې شونډې زېړ مخ چیغې وهلې مور یې ورته د وچې شوې ترخې پاڼې په اوبو کې واچولې
خو د یتیمې نجلۍ هېڅ درد یې ارام نه کړ، نجلۍ ټوله شپه وژړل ، د کونډې مور یې هېڅ وسه
نه وه تر دې چې سهار شو په کلي کې ډاکټر هم نه ؤ یوازې په ولسوالۍ کې یو روغتون ؤ چې د
جگړې تپیان یې درملول، د ولسوالۍ لاره هم ډېره لرې او کنډو کپره وه کله به د دښمن له لورې
کمین هم نیول کېده، د کونډې هېڅ وسه نه وه په کور کې یې یوازې یوه لور او یو پنځه کلن
یتیم زوی درلود ، خدای ته یې سوالونه کول ، له ځانه سره یې وویل : کاشکې د ډاکټرانو هغه
گرځنده ډله چې کله کله به کلي ته راتله راغلې وای د سهار اته بجې وې چې د کلي په جومات
کې په لاوډسپیکر اعلان وشو، د ډاکټرانو ډله راغلې ماشومان او ناروغان مو راولئ، کونډې
له ځانه سره وویل :اوس مې د لور چاره وشوه او یو څه خوشاله شوه له ځانه سره یې وویل :
خدایه په رښتیا هم چې پر خپلو بندگانو ډېره مهربانه یې ! له ځانه سره یې شکرونه ویستل او
ویې ویل اوس به ډاکټر زما د لور علاج همدلته وکړي کنه نو ما بې کسه او بې وسه به چېرې
خپله لور په دې جگړه کې تر ولسوالۍ رسوله بیا یې خپله لور د کلي جومات ته د ډاکټرانو د
کتنې لپاره بوتله په جومات کې د ناستو کسانو له ډلې څخه یې د کلي یو تن سپین ږیری

راوغوښت او د خپلې لور سپارښتنه يې ورته وکړه ، کونډه ښځه غلې د جومات د کړکۍ ترځنګ ودرېدله سپين ږيري د هغې لور د ډاکټر پرمخ کې کېنوله، ډاکټر تر معاينې وروسته وويل : دا نجلۍ خو اپنډکس ده ، دا بايد ضرور خپل پلار د ولسوالۍ تر روغتونه ورسوي يوازې څو ساعته وخت لري په دې وخت کې يتيمې نجلۍ په خورا ناهيلۍ وويل : پلار خو مې لاپخوا راته جګړه مارانو وژلی دی.

د هېواد ۱۳ مه ګڼه د تلې مياشت

بهاره تاته وايم !

بهاره ! څومره ښايسته هوا او ښکلی نوم لرې، څومره دې چې نوم په زړه پورې دی هم هغومره ښکلاګانې هم له ځانه سره راوړې.

بهاره! پوهيږې چې د هر چا ولې دومره ډېر خوښېږې؟ ځکه چې ستا هغه پسته او لـه اداګانو ډکه وږمه چې له طوفاني خزانونو څخه يې کډه کړې وه بېرته ستا په همغږۍ خپل کور ته راځي او د خپل وطن د مينانو ترمنځ عطرينه او ګلورينه هوا بدرګه کوي، مينه راوړې او کرکې له منځه وړې.

ګرانه بهاره! ته په دې هم پوه شه چې ستا د نشتوالي پر مهال د طبيعت ټوله ښکلا او سره او زېړ ... ګلونه چې په ليدو يې سترګې او دماغ روښانه کېږي، د خلکو زړونه خوشاليږي، د نازولو ناز پرې تازه کيږي، د عاشقانو مينه پرې ماتيږي، د بوډاګانو زړونه پرې ژوندي کيږي، د ځوانانو عاطفه پرې راپاريږي او د ماشومانو زړونه پرې غوړيږي .... او ستا هغه په زړه پورې هوا چې په دښتو او رغو کې ستاد رنګارنګ ګلونو په پاڼو چليږي، ځکه نو ګرانه بهاره ستا راتلل زموږ ټولو لپاره د قدر وړ دی.. موږ ټول ځوانان، ماشومان.... ستا لاره په مينه څارو ځکه چې بهار له ځانه سره مينې راوړې خو زموږ ګرانه بهاره ! ته هم رېښتينی بهار شه! او د مينې بهار شه ! په خپله غېږه کې سره او زېړ ګلونه راوړه ، خنداګانې، خوښۍ او ... راوړه .

ګرانه بهاره! تا چې کلونه کلونه له موږ څخه کډه کړې وه خو دراتلو پر مهال دې زموږ سره د ډېرو ګلونو د راوړلو ژمنه وکړه، خو اوس هغومره نه ښکاري لکه څنګه چې ستا ژمنه وه، تا خو له ځانه سره ګلونه راوړل ، هوکې ضرور به دې راوړل! ځکه چې ته بهار يې ! بهار تل ګلونه

راوړي، مينه ژوندی کوي او د طبيعت او کايناتو ترمنځ د مينې مزي غزوي، ګودرونه په شور راولي، بلبلانو ته د بڼونو پر لور بلنه ورکوي، مينانو ته د مينې ښکلی ګل په لاس ورکوي، نوځکه ګرانه بهاره ډېر ګلونه راوړه ! زموږ لمنې د اوږده خزان د طوفانونو او سيليو له امله کلونه ، کلونه خالي پاتې شوي دي، ځکه موږ ستا د ډېرو ګلونو هيله لرو.
ګرانه بهاره ! راوړه سره او زېړ... ګلونه، راوړه هسې نه چې له تا نه مو هم د خزان په څېر زړونه تور شي، زموږ زړونه د اوږده خزان سيليو کلک ځپلي، زموږ زړونه مات شوي، اوس چې زموږ ماتو زړونو ستا د راتلو له امله تکور موندلی هسې نه چې بيا مات او خپه شي، ځکه چې زموږ زړونه نازک شوي ، نازک زړه د نازک ګل په څېر ډېر ژر مړاوې کېږي، نو راوړه ګلونه دومره ګلونه راوړه چې ښکلا يې هغه بېکاره او ګنده بوټي چې ستا په راتلو زرغون شوي له منځه يوسي دومره ګلونه راوړې چې زموږ په منځ کې مينه او الفت واچوې او کرکې مو له منځه يوسې، ګودرونه مو د مستو پېغلو او ځوانانو په زړه راښکونکو خندا ګانو او د طبيعت د نازکو پېرزوينو په آتڼونو بدرګه شي، نو ګرانه بهاره ! هميشه بهار شه ! زموږ له زړونو څخه د خزان د کرکې تغر ټول کړه ! موږ د مينې په ګلونو خوښ او معطر کړه ! موږ د خزان، بادونو ډېر ځپلې يو بهار شه ! او هميشه بهار زموږ د هېواد او کورونو بهار او زموږ د مينې بهار.....!
هېواد ورځپاڼه ۲ مخ د وري لسمه نېټه ۱۳۸۵ هـ لمريز

## اواز د مينې

| | |
|---|---|
| لکه لمبه چې په شبخون تېرېږي | هسې مې زړه ستا په بېلتون ځورېږي |
| وايه ! وصال دې ولې دومره ګران دی ؟ | په تمه ، تمه نن پرون تېرېږي |
| ښکلا دې ډېره ده د تورو سترګو | ځکه بېلتون دې په کړوون تېرېږي |
| قيمت يې وايه که په وس مې رسي | سر مې ستا مخکې په زبون تېرېږي |
| دا ښکلي، ښکلي زما ډېر خوښېږي | ځکه شېبې مې په جنون تېرېږي |
| ګناه مې څه چې رانه لرې ګرځې | د ځوانۍ ژوند مې په ژړون تېرېږي |
| که يو اواز د مينې وکړې ښکلې | د ((مختار)) ژوند به ټول سکون تېرېږي |

آثار:
۱- خزان وهلې څانګې:  ناچاپ ، د لنډو کیسو ټولګه ده چې د جګړې او ناوړه دودونو لـه املـه زمونږ د هېواد د ښځو او ښجونو حال په کې رانغښتی دی.
۲- په سلګونو تحلیلي، ادبي او سیاسي مقالې،     چاپ

# مجیب الرحمان (امیري)




مجیـب الرحمـان امیـري د پشـم ګـل زوی پـه ۱۳۲۴ هجـري لمریـز کـال کـې د وردګـو ولایـت د سیدآباد ولسوالۍ د تنګي درې د دولت خیلو په کلي کې زېږېدلی یم، لومړنۍ او ثـانوي زده کـړې مـې د همـدغې درې د امـام ابوحنیفـه رح پـه عـالي لیسـه کـې ترسره کـړېـدي. تـر فراغـت

وروسته په کال ۱۳۸۳ هجري لمریز کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، پښتو څانګه کې ومنل شوم او وسمهال د همدې څانګې د دریم کال زده کړیال یم.

د کلام بېلګه:

غزل

ستا له وربښمینو شونډو اورم اوس د غم سندرې
د سوز په تار باندې پېیلې د الم سندرې
چې مې د ذوق پر لار اغزي د پښو سلام ته راځي
څنګه ساه وانخلي په سترګو کې د نم سندرې
زما د ساده تخیل سپین منبر یې وداغلو
له کومه راغلې د لمبو د جام وجم سندرې
بیا مې تر غوږه شوه سر او تال د نغمو لارې وکړې
ښایي چې راوړي تر ضمیره د ماتم سندرې
څو مختورن د زمانې راشي خرقه کې د حق
په خوله ګونګی په روح خپه کړي د صنم سندرې
دا بدنظره دا دوه مخې کورنۍ د شیطان
دتور په داغ باندې کړي رنګ زموږ د چم سندرې
د ژوندون شمعه بلول هم سربښند نه غواړي
په سستو زړونو ګټل کېږي د خرم سندرې

آثار:

۱- د ډرامو ټولګه (ناچاپ)
۲- شعري ټولګه (ناچاپ)
۳- د لنډو کیسو نیمګړې ټولګه (ناچاپ)

# محمد اجمل ( هوډمن )

محمد اجمل (( هوډمن )) د الحاج محمد رفیق زوی په کال **۱۳۵۷** هـ ل د وري د میاشتې په **۷** نېټه د میدان وردګو ولایت د مرکز ( میدان ښار ) د امرخیلو د نایبانو په کلي کې مې سترګې نړۍ ته پرانیستې.
لومړنۍ او منځنۍ زده کړې مې په کابل کې د علاالدین په تجربوي ښوونځۍ او د حبیبې په عالي لیسه کې سرته رسولي دي او په کال **۱۳۷۸** هـ ل کې د میدان وردګو ولایت د حضرت خالدبن ولید له عالي لیسې څخه فارغ شوی یم. د کانکور په آزموینه کې لـه ګډون وروسته د کابل پوهنتون دحقوقو او سیاسي علومو پوهنځۍ ته بریالی شوم او په **۱۳۸۳** هـ ل کال کې مې د نوموړي پوهنځۍ د اداري او ډیپلوماسۍ له څانګې څخه په دوېمه درجه بری لیک ترلاسه

کړ. اوس د حقوقو په نړیواله ټولنه کې د حقوقي مرستندوی ( مدافع وکیل ) په توګه دنده ترسره کوم.
لا په ښوونځی کوم چې د شعر او نثر په لیکنه مې پیل کړې وه خو د بیان د آزادۍ په وړاندې پرتو ستونزو د قلم خوځولو اجازه خو کله چې د افغاني ادب په ډګر باندې د آزادۍ پلوشې وغوړېدې، د نورو لیکوالو په څېر مې قلم ته زور ورکړ او په بېلابېلو برخو کې ګڼې لیکنې وکړې چې د افغان غږ، ډیوې، مشعل دیموکراسي، ګوربت، خانواده ، اراده او نورو خپرونو کې خپرې شوې او له پوهنځی څخه تر فارغېدو وړاندې د افغان غږ اونېزې، د لیکوالي ډلې غړی وم چې وروسته بیا د ژغورنې د جریدې مسؤل مدیر او اوس مهال د دریځ د میاشتنۍ خپرونې چې کلتوري او ټولنیزه خپرونه ده مسؤل مدیر په توګه دنده ترسره کوم او د لیکنو شمېر مې نږدې دوه سوو ته رسیږي چې د نثرونو پرتله مې شعرونه لږ دي چې ځینې یې په خپرونو کې چاپ شوي هم دي.

د لیکنې یوه بېلګه :
د خلکو داستوګنځیو ( کورونو ) مصؤنیت ته باید درناوی وشي !
د شخص استوګنځی له تیري او تعرض څخه خوندي دی هېڅوک او حتی د دولت مامورین حق نه لري چې د واکمنې محکمې له حکم او د قانون له وړاندوینې پرته دچا کورته ننوځي. خدای ج کور د وګړو د شخصي چاپیریال په توګه خوندي بللي او نور یې په هغه باندې له تیري څخه راګرځولي، ځینې وخت پولیس، امنیتي کسان او آن ځینې خپلوان او ګاونډیان چې یو له بل سره کورنی تګ او راتګ لري پرته له دې چې قانون ورته اجازه ورکړې وي په خپل سر پرته له اجازې او یا هم د دروازې له وهلو دخلکو کورونو ته ورننوځي چې دا عمل د کور او استوګنځي مصؤنیت له ګواښ سره مخامخ کوي.
خدای ج د نور سورت په ۲۷ او ۲۸ ایتونو کې په دې هلکه داسې لارښوونه کړې :
(( ژباړه : ای هغو کسانو چې ایمان مو راوړی، پرته له خپلو کورونو څخه د نورو کورونو ته مه ننوځئ تر څو مو چې اجازه نه وي اخیستي او دهغه ( کور ) په اهل مو سلام نه وي ویلی او دا ستاسو لپاره غوره ده ښایي چې پند واخلئ. او که څوک مو په هغه کور کې پیدا نه کړل مه

ورننوځي. تر څو چې اجازه يې نه وي ورته کړې او که يې ورته وويل چې بېرته وګرځئ دا ستاسو لپاره پاکي او سپېڅلتوب ده. ))
د قرآن کريم له دې مبارکو آيتونو څخه څرګنديږي چې خداى (ج) مسلمانان د نورو د کورونو په مصؤنيت باندې له تيري څخه منع کړې او ښکاره خبره ده چې د خداى (ج) له لارښوونو څخه سرغړونه ګناه ده .
دغه راز د افغانستان اساسي قانون چې د اسلامي شريعت ارزښتونه يې په پام کې نيولي پخپله ۳۸ مه ماده کې يې دکور له خونديتوب څخه داسې ملاتړ کړى:
(( د شخص استوګنځى له تيري څخه خوندي ده هېڅوک د دولت په ګډون نه شي کولى د استوګن له اجازې يا د واکمنې محکمې له قراره پرته او بې له هغو حالاتو او لارو چې په قانون کې ښودل شوي د چا کور ته ننوځي او يا يې ولټي. ))
په دې اساس ويلى شو چې د هېواد اساسي قانون د استوګنځي مصؤنيت ته درناوى کوي او دولت د هغه په رعايت کولو مکلف بولي خو يو ټکى بايد له پامه ونه غورځول شي چې د څرګند جرم په مورد کې مسؤل مامور کولاى شي چې د محکمې له مخکنې اجازې پرته د يو شخص کور ته ننوځي او يا هغه ولټي خو ددې لپاره چې له دې استثنا څخه ناوړه ګټه وا نه خيستل شي. مامور مکلف دى چې له پلټنې وروسته د قانون له خوا په ټاکلې موده کې د محکمې قرار ترلاسه کړي.
همدارنګه د بشر دحقوقو نړيواله اعلاميه د مدني او سياسي حقوقو نړيوال تړون او د بشر د حقوقو اسلامي اعلاميه د استوګنځي مصؤنيت د اشخاصو حق بولي او په هغه باندې د تيري مخالفت کوي. د پورتنيو نړيوالو حقوقي اسنادو له نظره د هر انسان کور او استوګنځى له لاسوهنې او تيري څخه خوندي ده هېڅوک حق نه لري چې د انسان د کور حرمت ته سپکاوى وکړي او د خاوند له اجازې پرته په زور او غير مشروع ډول هغه ته ورننوځي. هيڅوک حق نه لري چې د چا سرپناه او کور وران کړي او اوسيدونکي يې بې کوره کړي ځکه چې استوګنځى د وګړو د هوساينې او د اسرارو د ساتنې ځاى ده خو په ډېره خواشينې سره بايد وويل شي چې دغه اصل ته لاتراوسه هم زموږ په هېواد کې پاملرنه نه ده شوې .

# نصیراحمد «امیدي»




نصیراحمد «امیدي» د محی الدین «ترابي» زوی د میدان وردگو ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د چاردهي په کلي کې په ۱۳۶۵ هـ ل کال کې زېږېدلی یم.
تر نهم ټولګي پورې مې زده کړې وکړې او وروسته مې دیني علومو ته مخه کړه. د شعر سره مې ددې لپاره زیاته مینه ده چې هېواد حالات او د زړه غمونو مو په شعر سره ځرګندوه، اته کاله کېږي چې په شعر لیکلو مې پیل کړی او تر اوسه د (۷۰) شعرونه مې د قلم تر څوکي تېر کړیدي .چې نعتونه، سندرې او آزاد نظمونه په کې رانغښتي دي چې تراوسه مې کومه ټولګه تر چاپه نه ده رسیدلي.

د کلام نمونه

عقیده مې د ابراهیم ده جسدونه ماتوم
په میخانه کې د شرابو به جامونه ماتوم
پلار نیکه مو په اسلام کې پیدا او مړه دي
نو زه به دې اسلام ضد لښکرونه ماتوم
په ټول جهان کې به د اسلام ډیوې کړم بلې
د یهودو نصاراو به پلانونه ماتوم
د غیرت توره به مې ځلېږي په جهان کې
بچی د احمدشاه یم د ملحدو به پوځونه ماتوم
مطلب مې اعلی کلمت الله ده
همت مې د حمزه دی د جهل بۀ کاروانونه ماتوم
د غزنوي په شان به تاریخ پرېږدم
په هند کې بۀ بوتانو سرونه ماتوم
څوک چې فرعون غوندې تنګ نظره شي
زه به د داسې تنګ نظرو فکرونه ماتوم
افغاني مینه مې راغوښتې ځانته
زه امیدي به د کفارو زولنې او زنځیرونه ماتوم

شعرونه مې یو څه د کندهار ولایت د «هوډ» په مجله کې چاپ شوي او یو شمېر یې په یوه بله مجله چې د کندهار په نامه خپرېږي چاپ شوي دي. لکه مخکې مې چې یادونه وکړه کومه ټولګه مې چاپ شوی نه ده خو په راتلونکي کې یې د چاپ کولو هوډ لرم.

# وحيدالله ( جلالزی )



زه وحيدالله (( جلالزی )) د غلام حضرت زوی د وردگو ولايت د سيدآباد ولسوالۍ د دشت توپ غازنجيلو په کلي په ۱۳۶۵ هـ ل کال کې زېږېدلی يم.
په ۱۳۷۴ هـ ل کال د دشت توپ په لومړنۍ ښوونځی کې شامل او په ۱۳۷۹ هـ ل کال کې د نوموړې ښوونځی د شپږم ټولگي څخه فارغ شوم چې بيا په ۱۳۸۰ هـ ل کال د شيخ آباد په عالي ليسه کې داخله وکړه او اوس د همدې ليسې د دولسم ټولگي زده کوونکی يم.
له نثر ليکلو سره مينه لرم او درې کاله کېږي چې په نثر ليکلو مې پيل کړی دی.

د نثر بېلگه :

## د مور او د ښایسته ګلونو روزنه

یوازې ښایسته ګلان هغه نه دي چې د غرو په لمنو او د ښتو کې زرغون او شنه وي. بلکې یوې ټولنې ته د یو ښه مسلمان روزل هغه د یو ګل مثال لري چې نه یوازې ټولنه پرې ښایسته وي بلکې ګټه یې نورو انسانانو ته هم رسیږي او کله هم د نورو لپاره لارښود او رهبر جوړ شي.

نو باید هره مسلمانه مور په خپله غیږ کې داسې ګلونه وروزي چې د ټولنې لپاره د ویاړ او افتخار وړ وګرځي، تر څو د خلکو او ټولنې لپاره خدمت ملا وتړي او د خپل پیغمبر حضر محمد صلی الله علیه وسلم لاروی واوسي، داسې اغزي ونه کري چې د ټولنې او خلکو ته غمونه او مصیبتونه وزیږوي.

هو مور ده چې خپل اولاد په روزنه کې مهم رول لوبوي که یې دهغه په روزنه کې زحمت وویست هغه یې خپلو مسؤلیتونو ته متوجه کړ، د هغه د ګرځېدو کار، عبادت او ورځني ژوند څخه یې ځان خبر کړ نو نه یوازې د اولاد راتلونکی به یې په دنیا او آخرت کې روښانه وي بلکې مور به هم په خپله د خپل اولاد په کارنامو په دنیا او آخرت کې سرلوړې وي

او که یې بې غوري ورسره وکړه د هغه د ژوند، کار، اخلاقو څخه بې خبره پاتې شوه او یا یې پروا ونه ساتله نو هرومرو بهٔ یې له یو لوري د خپل اولاد راتلونکی تریخ وینې او ترخنګ به یې د دنیا او آخرت شرم مل وي او د ټولنې وګړي به پرې لعنت وایي، نو زه د ټولو میندو څخه په درنښت هیله کوم چې باید په اوسني سخت وخت کې د خپلو اولادونو د روزنې لپاره ډېره پاملرنه وکړي.

په درناوی

زما د نثرونو شمېره (۲۰) ته رسیږي چې تراوسه یې په چاپ کولو نه یم بریالی شوی.

# انجینر عبدالهاشم ( ناصري )




انجینر عبدالهاشم (( ناصري )) د عبدالله زوی په کال **۱۳۵۷** هـ لمریز کې د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ د موشکي په صغرا نومي کلي کې يې نړۍ ته سترګې رالوځې کړيدي.

لومړنۍ زده کړې مې له خپل پلار څخه کړي او په **۱۳۷۵** هـ لمريز کال کې په خپل سيمه يز منځني ښوونځي ( شهيد عبدالسلام ) کې تر شپږم ټولګي پورې زده کړې وکړې او وروسته د زده کړو د دوام په موخه د قره باغ د سلطان محمود غزنوي په ليسه کې شامل او په ۱۳۸۱ هـ لمريز کال کې له همدې ليسې څخه په ښه درجه فارغ شوم.

د کانکور د آزموينې په پايله کې د خپلې خوښې انتخاب يعنې د کابل پوهنتون د زراعت پوهنځی ته بريالی شو.

۱۳۸۲ هـ لمريز کال کې مې په لوړو زده کړو پيل وکړ او دا دې انشاء الله سږ کال **۱۳۸۵** هـ ل د فارغېدو کال دی او لوړې زده کړې مې د بشپړېدو په حال کې دي.

له وړوکوالي څخه مې له شعر او ادب سره خورا ډېره مينه لرله او شاعرانه طبيعت مې هميشه د شعر په ويلو بوخت ساتلی.

د شعر ترڅنګ ممثل هم يم، تل به مې د خوږې ژبې او پستو مګر له مانا ډکو الفاظو په وسيله ملګري ميلمانه کېدل او د ملګرو مجلس به مې جوړوه.

له نهم ټولګي څخه مې په شعر ويلو پيل کړی، لکه څرنګه چې مې يادونه وکړه يوه تکړه ممثل هم وم نو زما شعرونه په لومړي سر کې طنزي او اصلاحي بڼه درلوده. مګر د لوړو زده کړو له پيل سره سم مې د شعر لوری بدلون ومونده. د طنزي کليمو او الفاظو کارول مې په شعر کې بند کړل. اوسمهال د نور کله خلاف ، غزل، آزاد شعر، نظمونه او خاصتاً داستاني شعرونه په داسې بڼه ليکم چې د لوستونکو او اوريدونکو تنده پرې ماته شي.

شعر په ډېره ساده ژبه ليکم همدا سبب دی چې لوستي او نالوستي هېوادوال هم زما د شعر په ژبه پوهېدای شي.

د کلام بېلګه:

چې کړې هغه به رېبې
يوه کيسه مې اورېدلې له مشرانو
ګټوره پندوره ده يارانو
يو سړی چېرې يو کلي کې استوګن وو
د ژوند سختو سره مخ په زړه غمجن وو
له بچې سره يې تل شخړې او جنګ وو
د غمو په اور سېځلې و پتنګ وو
د ژوند سختو سره مخ لاس او ګرېوان وو
له خپل لاسه رسېدل ورته حېران و
نه په ژوند کې يې خوښي ونه لېدلې
نه له چانه ښه خبره اورېدلې
ځکه دی وو ټولو خلکو پېژندلی

په ښه کار کړنه کې چا نه و لېدلی
د هرچا په لورې برگ، برگ یې کاته وو
د نفرت پنډونه زړه باندې پراته وو
تېرېدل پرې د ژوند مېاشتې او کلونه
پوخ عادت یې وو ښکنځلې او جنگونه
چې ځواني یې شوله تېره او بوډا شو
چې د خپل او د بل ټولو د خندا شو
چې یې عمر د زگېروو په بدرگه شو
له جنگونو څخه پاتې شو سوکه شو
د بچې د خپل او بل په قدر پوه شو
وخت پرې تېر وو هسې خوشې په چورتو شو
نه خبره یې په چا ښه لگېدله
خپل کاله کې یې خبر چانه منله
ټول په تنگ یې له ژوندونه له زگېرو وو
خپل بچې یې هم دوکې په سوجو وو
یوه ورځ بچې روان کړ د مرگ خولې ته
ورته وې ویل چې ځو شفاخانې ته
د بچې په خیال کې مرگ یې دریابې وو
غورځول د دریاب منځ ته یې حتمي وو
پلار خبر لالدې رازه څخه نه وو
لا خیالونه یې د ژوند سر کې پراته وو
چې نېژدې شول د دریاب غاړې ساحل ته
تېر وختونه شول وریاد د پلار قاتل ته
د بچې لور ته یې مخ کړ په وینا شو
رنگ یې ژړ شو په سلگو او په ژړا شو

ویل زویه په همدې ځای سمندر ته
مې ګذار کړه څنګ ته ځم د خپل پدر ته
بچی ودرېده هک پک شو ویل پلاره
څنګه پوه شوې لاخو پاتې ده ژوند لاره
لاګرېوان څخه مې نه یې رانیولی
لاد سیند څپو کې نه یې زنګېدلی
لاکبانو دې بدن نه ده څکلی
د دریاب ژوو دې شرپ نه ده اورېدلی
څنګه پوه شوې چې د ژوند شېبې ختمېږي
سمندر ته نېژدې کېږي لاکمېږي
د پلار اوښکې په بڼو ولې پېلې
څو ځناره تر ګرېوانه رسېدلې
په سلګو سلګو بچي ته په ګویان شو
تېر وختونه شول ور یاد هک او حېران شو
ویل زویه په کلو کلونو وړاندې
په همدې ځای مې په پلار وکړلې ساندې
زما پلار چې بوډا شوی وو بې توانه
په همدې ځای مې نېولی له ګرېوانه
په همدې دریاب لاهو مې کړ په خپله
حیا نه راتله له خپله اوله بله
په بې رحمه مې ګذار کړ دې دریاب ته
پام مې نه وو همدې ورځې دې حساب ته
چې له ماسره به هم همدا چلند شي
زما روح په دې دریاب کې په ختن شي
د بچي وېښتان یې جګ شولو له وېرې

ویل پلاره چې څه تېرې هغه هېرې
تا له ماسره چې کړي څه ظلمونه
په دنیا کې دې دوزخ کړل زما عمرونه
انتقام در څخه نه اخلمه پلاره
که مې واخیست زه به هم ځم په دې لاره
چې کرې هغه به ریبې همدا متل ده
که نن وکرم سبا خو یې رېبل ده

د لیکوال او شاعر اثار:
لاتراوسه مې کوم اثر نه دی چاپ شوی خو اثار مې د چاپولو په تمه انتظار باسي.

# احسان الله (احسان)




زه احسان الله «احسان» د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ د باران کلا په کلي کې په ۱۳۶۴ هجري لمریز کال کې دې نړۍ ته سترګې وغړولې. خپلې
لومړۍ زده کړې مې په خپله سیمه کې کړې دي چې اوس مهال دهمدې ولایت مرکز د ښوونځۍ په دولسم ټولګي کې زده کړه کوم. په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې مې له شعر سره مینه پیدا شوه چې تراوسه مې (۱۵۰) پښتو شعرونه لیکلي دي. ددې ترڅنګ اوسمهال د غزني ولایت په مرکز کې د امیدجوان راډیو د پښتو څانګې په برخه کې کار کوم..

د کلام نمونه :

په دې مهلت کې به مې څوک تر هغه ښاره یوسي
څوک به په ما شي مهربان چې مې تر یاره یوسي
پښتون عاشق یمه هېڅکله پښتو نه ماتوم
مینه به کړم که مې منصور غوندې تر داره یوسي
لاس به له مینې نه وانخلم دا په جهر وایم
که مې ټولې د رقیبانو تر ښاماره یوسي
له هغې مینې به په شا لکه بلال نه شمه
که مې یهود او نصارا بیا تر سنګساره یوسي
لکه یوسف د زلیخا چې مې په تور ونیسي
پاچا د مصر ته به څوک ما تر درباره یوسي
زه احسان سر به ترینه ځار کړم چې عاشق یم باندې
که مې خلیل غوندې نمرود تر سره انګاره یوسي
(غزني ښار، پښتون آباد کلی)

د شاعر آثارو په برخه:
له هرې موضوع سره مې هم د هر شعرونه لیکلي خو تر اوسه مې د خپلو شعرونو ټولګه نه ده چاپ شوي خو لومړنی ټولګه مې د (د شپې اوښکې) په نوم، دوېمه ټولګه د (د ګودرجنازه) په نوم ناچاپ آثار دي چې لاتراوسه نه دي چاپ شوي.

# احمد شاه (ماکو)



زه احمدشاه ماکو د محمد توکل ماکو زوی ۱۳۵۱ هـ ل کال کې د غزني ولایت د خواجه عمري ولسوالۍ د جره کات په کلي کې سترگې دنیا ته غړولي دي. لومړنۍ زده کړې د غزني د شمس العارفین په ښوونځی کې او ثانوي زده کړې په پېښور کې د ډاکټر عمر شهید په لیسې کې ترسره کړېدي.. په کال ۱۳۸۱ هـ ل کې د غزني ولایت د ځوانانو او کلتور ریاست کې د کتابتون د آمر په توگه په دنده پیل وکړ او له دې سره جوخت د راډیو تلویزون د پښتو څانگې ویاند او سرېېره پر دې څه موده د سنایي اونیزې د تحریر دهئیت د غړي په توگه، همدارنگه د کلید اوونیزې او راډیو سره د خبریال په توگه پاتې شوی یم او تر اوسه پورې د ځوانانو اوکلتور په ریاست کې کار کوم.

لنډې کیسې او څه ناڅه په مختلفو موضوعاتو باندې لیکنې کړې دي چې لاتراوسه نه دي چاپ شوي او لامل يې اقتصادي ستونزې کېدای شي.



# اسدالله (بلهارجلالزی)



نوم مې اسدالله (بلهار جلالزی) د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ د فاني بابا په کلي کې زیږېدلی یم ، په پښتو او دري لیکنې کوم خو کله کله شعر هم په خپلو گوتو کې رانغاړم ، څه موده د سنايي اوونيزې مسؤل مدير او د زمزمې د اوونيزې مرستيال او همدارنگه د لونګ د مجلې مرستيال پاتې شوی یم. همدا راز د افغانستان د اوونیزې خبريال هم وم . د تهران د راډیو کارکونکی وم اوسمهال په غزني کې د بي بي سي سيمه ايز خبريال یم .
له مطالعې سره مې مينه زياته ده او ليکني هم کوم چې ځينې ليکنې مې د هېواد په بېلابېلو خپرونو کې خپرې شوې دي .

د کلام نمونه :

د لارې لېونو دې له درباره وشړلم
زاهد په مېکده کې له خماره وشړلم
پوښتنه د گودر مې له چناره ځينې کوله
تحسيب په قهر قهر له چناره وشړلم
د مينې په ستونزمنو لارو ټينگ ږدمه گامونه
قسمت شو مرور زنې له داره وشړلم
دا ونه مې تل له خزان ځينې ويرونه
دا هسک غضبي بيا هم له بهاره وشړلم
وخته دا يادونه راسره ساته په زړه کې
په جبر، جبر جبر دې له ياره وشړلم
په ورو ورو ترنگېدمه ددې غرونو په لمنو
نغمه ومه د مينې چاله تاره وشړلم
سحر ويل ماښام ته نن په چېغو چېغو راشې
په کومه يوه گناه دې له بلهاره وشړلم

زيات شمېر شعرونه مې ليکلي چې څه ناڅه يې په سنايي اوونېزه او ندای غزنه کې چاپ شوي خو د کتاب په بڼه مې تراوسه کوم اثر نه دی چاپ شوی او ناچاپ اثار مې دادي :

۱- مات بنگړي او مات گودرې (شعري ټولگه) ناچاپ
۲- مقالې څه ! (د طنزونو ټولگه) ناچاپ
۳- داسې دې درياد شم لکه ته چې مې ياد يږې (شعري ټولگه) (ناچاپ)

# در محمد (سردار زی)




زه درمحمد «سردارزی» د سردارخان «سلطاني» زوی چې په ۱۳۲۲ هجري لمریز کال کې د غزني ولایت د واغز ولسوالۍ د ترنه په کلي کې نړۍ ته سترگې غړولي دي.
د ښوونځي له فراغت څخه وروسته د واغز د محمدخان د کلي په عالي لیسه کې دوه کاله د ښوونکي په توگه دنده ترسره کړې او بیا وروسته په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې د غزني ولایت عالي دارالمعلیمن ته شامل او په ۱۳۸۴ هـ ل کال کې فارغ شوم. همدارنگه درې کاله مې د غزني ولایت د وکیل محمدجان کوچي په لیسه کې د ښوونکي دنده سرته رسولي ده او اوس د غزني ولایت د فرهنگیانو په ټولنه کې د نده لرم.

تراوسه پورې مې کوم شعر نه دی لیکلی خو څو مقالې مې د هېواد او نورو ستونزو په اړه لیکلې دي چې لاتراوسه یوه یې هم نه ده چاپ شوي او په راتلونکې کې غواړم چې یې چاپ ته ورسوم.

# رحمت الله (طبيب زاده)




زه رحمت الله طبيب زاده د حاجي غلام محی الدين زوی د غزني ولايت د اندړو ولسوالۍ د غبرگلونو په کلي کې زېږېدلی يم لومړنۍ زده کړې مې د اندړو په ولسوالۍ کې کړي او ثانوي زده کړې مې په سنايي ليسه کې سرته رسولي دي همداراز لوړې زده کړې مې د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځی په پښتو څانگه کې کړيدي چې په ۱۳۵۲ هجري لمريز کال کې فارغ او له فراغته وروسته لس کاله د ښوونکي په توگه پاتې شوی يم. وروسته له دې چې هغه څه په هېواد کې رامنځته شو مخ مو بلې خوا ته واړوه او مهاجر شو د هجرت په موده کې مې مختلفې دندې سرته رسولي دي لکه په عدليې وزارت کې د اداري مدير په حيث او اوس د غزني ولايت د عالي دارالمعليمن د پښتو څانگې استاد په توگه دنده ترسره کوم.

نثري كلام نمونې ډېرې دي او په زياتو مجلو کې مخکښې راوتلي دي چې دبېلګې په توګه لونګ له غزني څخه دوه مياشتنۍ خپريدونکي مجله ده د (څوک غوره کړو) تر سرليک لاندې زما ليکنه غوره شوې ده .



# شیراحمد (حیدر)



شیراحمد حیدر د غزني ولایت په قره باغ ولسوالۍ کې په ۱۳۵۴ هـ ل کال کې زېږېدلی یم. لومړنۍ او ثانوي زده کړې مې د کلېوالۍ په چاپېریال پښتنو کې د سید جمال الدین افغان په لیسه کې او د ثانوي دورې بری لیک مې په کال ۱۳۷۲ هـ ل کې دقره باغ د سلطان محمود له لیسې څخه لاسته راوړی دی.

په ۱۳۷۷ هـ ل کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو له پوهنځۍ څخه فارغ شوم، د پوهنځۍ له فراغته وروسته په بېلابېلو کلتوري ادارو او خپرونو کې مې کار کړی دی.

د یو کال په شاوخوا کې د کندهار په اطلاعاتو او کلتور ریاست کې، څه کم یو کال د پوهنې وزارت د خپرونو په ریاست کې، همدارنګه دوه کاله مې د کلید اوونېزه کې او دوه کاله مې په غزني ولایت کې دپژواک اژانس سره د خبریال په توګه دنده ترسره کړېده.

د لیکنې بېلګه :

مجرم( لنډه کیسه )

دا مې درېیمه شپه وه چې د هوټل په تیاره او یخه تل خونه کې مې تېروله، لاره چاره مې ورکه کړې وه نه پوهېدم چې پر کوم لوري وتښتم، په دې درېو ورځو کې مې تقریباً شل پلانونه وسنجول، خو ژر به بېرته پښېمانه شوم، یوازې یوه ګټه مې دا کړې وه چې په یوه ښه هوټلې اوښتی وم.

هوټلې پخوانی عسکري صاحب منصب ؤ، خو اوس یې د خپلمنځي جګړو له امله ، دولتي وظیفه پرې ایښې وه. او دیوې ګولې ډوډۍ پیدا کولو لپاره یې دا یو کال کېده چې دا هوټلګی پرانیستی ؤ.

هوټلې ته به ټولو خلکو ضابط صاحب ویل، ښه په کارپوه سړی ؤ، خو زما لپاره هم یو ښه مشاور و، ډېر زړه سواندي یې لرله سره لدې چې زما به یې هر ساعت احوال اخیست، خو په خپل کار کې هم ډېر مصروف و. ضابط صیب غلام نبي ښه ځوان ؤ ، په ونه نری جیګ، خو په غوښه یو څه پټ و، د ضابط صیب دهوټل ټول نظم د هماغه عسکري پلان له مخې پر مخ تلو، هوټل ښه پاک، خواړه یې ډېر خوندور چې اوس له ده هم ښه اشپز جوړ شوی و ماته به یې ویل : او کله کله دخلکو د ودونو اشپزي هم کوم ډېرې پیسې راکوي، ژوند مې ښه دی.

بېګاه چې به کله د خپل هوټل له کاره بې غمه شو نو ماته به راغی، یو ساعت خواله به یې راسره وکړه، زما د خلاصون لپاره یې په دې دریو ورځو کې څو طرحې راته وړاندې کړې، بلکې ترپایه یې راسره د مرستې ژمنه هم وکړه .

زه اوس له تېرو دریو ورځو رایسته د یوه مجرم په توګه د ضابط صیب د هوټل په کې تل خونه کې پروته وم. د پولیسو او ټېو حکومتي څارګرو تر تعقیب لاندې وم، پر ما دا تور و چې په یوه دولتي اداره کې مې د تشریفاتو د څانګې په مېلمستون کې څو تنو مېلمنو ته په خوړو کې زهر ګډ کړي و، په دې مېلمنو کې په څو تنو کورنیو مېلمنو سربېره شپږ تنه یې بهرنیان وو، زه اصلاً د تشریفاتو مسؤل وم، خو د ډوډۍ پخول او تیارول د نورو کار ؤ، اوس چې مېلمانه

بېخوده پراته وو، نو په دې تور زما لمن هم ککړه شوه چې ګویا له اشپزانو او د مېلمستون له نورو کارکوونکیو سره مې لاس یو و ، اشپزان او څو تنه د مېلمستون کارکوونکي په هماغه لومړي ساعت کې نیول شوي وو، خو دې نیول شویو کسانو اوس زما ګوته هم نیولې وه.

زه باید نه وای تښتېدلی، او د هماغه لومړي ورځې په تحقیقاتو کې مې ځان سپین کړی وای، خو زه له دې وېرې وتښتېدم چې په حکومت او نظامي څانګو کې چندانې د پلټنې قانون نشته . نو تر یو کال پورې دې ولاکه دوسیه خلاصه شي، بس همدا تېښته مې غوره وبلله. تر تېښتې یوه ورځ وروسته د ضابط صیب په واسطه خبر شوم چې په زهر خوړلو مېلمنو کې درې تنه بهرنیان او دوه تنه کورني مېلمانه مړه شوي دي، اوس نو که غل هم نه وم خو په غره کې مې ځای ورک وو. د ضابط صیب هوټل په دوهم پوړ کې د مساپرو لپاره څو کوټې هم لرې، خو زه له دې دریو ورځو راهیسته یوازې په کوټه کې پروت وم، دا له ماسره د ضابط صیب مرسته وه چې پټ مې وساتي او څوک مې ونهویني.

پلان داسې وو چې زه باید د څلورمې ورځې سهار وختي د ضابط په مرسته او مشوره له کابله غزني ته تښتېدلی وای، خو دا پلان هغه وخت ګډوډ شو، چې انډیوال ضابط هم راباندې بد ګومانه شو. د څلورمې ورځې په سهار وختي چې زه تازه له خوبه راوېښ شوی وم او د ضابط صیب د راتګ انتظار مې ایست، نو دپاس کوټې درې تنه مساپر چې دوه یې ښځې وې ، یو ماشوم ورسره و یوه ښځه په دې ګومان چې زما کوټه به تشناب وي را ننه وته ، په کوټه کې تپه تیاره وه، زه یې نه لیدلم، دې په دېوال لاس تپول او زما خواته را روانه وه، زه هم نه پوهېدم چې څه وکړم او څه ورته ووایم، دا له ځانه سره بنګېده ، خو زه یې په خبره نه پوهېدم او له دې سره نوره هم ماته رانږدې شوه، پرما یې لاس ولګېدو، له وېرې او وارخطایي یې یوه چیغه له خولې ووته او له دې سره ضابط صیب او له ښځې سره ملګري سړي زما کوټې ته را منډه کړه ، ښځه یې زبون وهلې تر لاس ونیوله زما له کوټې یې وویستله ، زه لکه بت پته خوله د کوټې په کونج کې ولاړ پاتې شوم.

شل دقیقې وروسته څلور تنو پولیسو سترګې را پلستر کړې، لاسونه یې تر شا راوتړل له هوټله چې ایستلم یوه پولیس راته وویل : مورې نن دربېمه ده په دې مجرم پسې ټول ښار ولټوه خو ضابط ورته وویل : دا دې ماهم په لاس درکړ.

زما لاجرم ثابت نه و او نه کوم قاضي او محکمې زما د جرم سزا راته ټاکلې وه، خو د نیم ساعت لارې په اوږدو کې چې د نوي زندان تر تل خونې پورې رسول کېدم، په موټر کې د پولیسو د ټوپکو تر قونداغو لاندې مې درنه سزا ولیدله. له تندي او خولې مې وینې روانې وې او څو ځایه مې بدن د وهلو ټکولو له لاسه سخت خوږېدو. پولیسو راته وویل: یو خو د څو تنو قاتل یې او بل دې په جرم د پاسه بل جرم، ته باید داسې سزا ووینې چې نه ژوندی شې او نه مړ. نه پوهېدم چې کوم ځای به، خو هماغه تیاري او هماغه یوازې کوټه، خو دلته زما په څېر ډېرو کسانو په تور تیارو کې د ناڅرګند برخلیک او ناهیلو سزا ګانې لیدې.
په پنځم سهار مې کوټې ور پرانیستل شو او درې تنه له لاسې بکسو سره راننه وتل، پوه شوم چې ایله مې نن دتحقیقاتو دوسیه پرانیستل شوه، په لومړۍ پوښتنه کې دا خبره وه، چې ولې وتښتېدې؟ خو تحقیق کوونکي دا راته وویل: ستا جرم پوره ثابت نه دی، ته د مېلمستون د اشپزانو او څو تنو کارکونکیو له لورې د وژنې په تور ککړ یې او ویلې دي، چې په ډوډۍ کې زهر تا ګډ کړي و، درېیمه پوښتنه دا وه، چې پر جرم سربېره جرم، له ما دتحقیق په لومړي سهار یوازې دا درې پوښتنې وشوې، خو ځواب یې سبا ته راځخه وغوښتل شو.
زه سره له دې چې بې جرمه بندي وم، خو خپل برخلیک ته زیات ځورېدم، ناروغ هم وم او دپولیسو له لاسه د وهلو ټکولو له امله د زخمونو درد هم ناکراره کړی وم. له همدې درانه فشار سره سره مې د سبا لپاره دریو پوښتنو ته په ذهن کې ځوابونه جوړول رنګول، دهمدې ورځې په ماښام ناوخته، دبندي خانې یوه کارکوونکي ډوډۍ راوړه، کاسه یې ترمخ راته کېښوده وې ویل: انجینر جمال ته یې؟ ما د هو په اشاره سر ورته وښوراوه، خو ده خبره اوږده کړه: تاته چې په هوټل کې کومه ستونزه پیدا شوې وه، د هغې په اړه څه فکر کوې؟ ما د ډوډۍ لوښی ځان ته رابېرته کړ و مې ویل: ددې خبرې ځواب له ما سبا پوښتل کېږي، زه به سبا ځواب ووایم او ته به هم خبر شې، په زړه کې مې دا راتېرېدل چې دی د زندان کارکوونکی نه بلکې کوم پلټونکی دی، خو ده خبره اوږدوله وې ویل: زه دا درته وایم چې ته به څه ځواب وایې؟
ما ورته وویل: که ته د سهارنیو دریو تحقیق کوونکیو استازی یې نو ځان را وپېژنه، چې ځواب درته ووایم او که کوم کارګر یې نو څه خپل کار دې کوه، ورته ومې ویل: زه مجرم نه یم نو د هېڅ جرم په اړه فکر هم نه کوم، زه یو بې ګناه بندي یم.

ده شاوخوا وکتل یو څه رانږدې شو وې ویل : هو! ته بې ګناه یې او زه خواخوږې درسره لرم او هم درسره مرسته کولی شم، ما پورته ورته وکتل ده پسې زیاته کړه : هغې ښځې ویلي چې دا په ناپوهۍ ددغه سړي کوټې ته ورغلې او دده په کوټه یې دهوټل د تشناب ګمان کړی و، نو اوس ستا د خلاصولو لپاره له ښځې سره ملګري سړي او دهوټل خاوند په ګډه هڅې پیل کړي ، سړي دا خبره وکړه او له کوټې ووت، په ما پسې یې له شا ور کولپ کړ. زه په لومړیو کې یو څه خوشاله وم، پوهېدلم چې د سبا لپاره مې د یوې پوښتنې ځواب پیدا کړی او دلوبې د ګټلو پای ته نږدې شوی یم، خو ډارېدم چې هسې نه لوبغاري قضاوت بدل کړي. غرمې ته لا وخت و، چې پروني درې کسان کوټې ته راننه وتلو دوسیې یې پرانیستلې پرته له دې چې ما څخه د پرونیو دریو پوښتنو ځواب وغواړي یو یې چې لنډ چاغ سړی و، زېړې عینکې یې پر سترګو وې راته وویل : سره له دې چې جرم دې ثابت نه دی خو پټې محکمې پرېکړه وکړه چې ته به پنځه کاله بند او دوه لکه افغانۍ نغدې جرمه پرې کوې، حیران پاتې شوم، چې څه ووایم او پټه محکمه یې لا څه بلا ده ، خو چې دوی ولاړېدل ومې ویل : ولې پرونۍ درې پوښتنې بېځوابه پاتې شوې، یوه یې چې لږ له ونې جګ او خړ پټکی یې په سر و مخ راواړوه وې ویل : پټې محکمې هغه درې پوښتنې رد کړې او له دې سره ووتل زما کوټه یې له شا راپسې وتړله.

اوس مې نو بیخي تمه وختنه، خو دا هیله مې لاوه چې څارونکي او ساتونکي مې راته ویلي و په هوټل کې ښځه ستا کوټې ته په غلط فهمۍ د رننه وتې وه او هم له ښځې سره ملګري سړي او ضابط مې د خوشې کېدو هڅه پیل کړې وه خو یوه خبره لا دا هم وه چې تر اوسه پورې د هغه ادارې څوک نه و راغلي چې ما په کې کار کاوه، خو دا تمه مې وه چې یوه ورځ به د تشریفاتو د ریاست په نوم او داصلي جرم د څېړنې لپاره رسمي پلټنه پیل کېږي.

څو ورځې وروسته چې لازما د ښه او بد هېڅ لوری نه و مالوم، غرمه مهال څلور کسه کوټې ته راننه وتل او پرته له دې چې څه راته ووایي زما تړلي لاسونه یې راخلاص کړل، سیخ یې له ځانه سره بوتلم، زموږ د ادارې د غونډو تالار ته یې وروستم، په تالار کې شاوخوا پنځوس کسه ناست ؤ، زه پوه شوم چې اوس اصلي دوسیه پرانیستل کېږي، مخامخ یې پر ستېج باندې ایښې چوکاټ باندې کېښنولم، لومړی یې رانه وپوښتل شول چې زما د تېښتې له ورځې تر نن پورې ټول جریان ورته ووایم.

ماته له اوله ځان بې ګناه ښکارېده او چې څنګه راځخه پوښتل شوي و، نو مې ټوله کیسه ټکی په ټکی ورته تېره کړه، یو څو کسان چې زما تر څنګه ناست وو، زما خبرې یې لیکلې، پر ناستو کسانو مې شاوخوا نظر واچاوه، د دولت ځیني لوړ رتبه کسان، د وژل شویو مېلمنو بهرنیانو د هیوادونو ځیني استازي، زموږ د ادارې مشران چارواکي او شاته لري په چوکیو کې مې لیدل، چې ضابط صیب او له ښځې سره ملګری سړی چې ماله تر دې مهاله په نامه نه پېژانده ناست و، خبرې مې خلاصې کړې د ځواب د اورېدو په تمه کېښناستم.
زما له خبرو ورسته سمدستي زما تر څنګ په ستېج ناست یو کس چې زما خبرې یې لیکلي وویل : ستا دوسیه بشپړه شوې، د څو ورځو پر له پسې څېړنو وښوده چې ته بې ګناه یې خو جرم دې شته او هغه ستا تېښته وه، چې ستا جرم یې ثابتاوه، له بله پلوه د څېړنو په جریان کې ستا د ریاست کارکوونکیو او څو تنو اشپزانو په ډوډۍ کې د زهرو په ګډولو اعتراف کړی او په دې کې زموږ د هېوادونو استازیو ته تسل وایو او اصلي مجرمین به مجازات کوو.
خو وروسته یې یوه خبره دا ورزیاته کړه چې انجینرصیب به تر یو کال پورې په هېڅ دولتي اداره کې د دندې د ترسره کېدوه اجازه ونه لري، ماته یې وکتل وې ویل ګناه ګار نه یې خو د تېښتې جرم دې شته .
له لنډو کیسو ، شعرونو او ادبي لیکنو سره مېنه لرم او هم مې لیکلي او لیکم یې چې د لنډو کیسو یوه ټولګه، یو ناول او د لنډو کیسو په اړه ژباړه مې چاپ ته تیار دي او یو ناول مې تر کار لاندې دی.
۱- ببړیوان ( ناول) چاپ ته تیار .
۲- د لنډو کیسو لیکلو لارې ( ژباړه) چاپ ته تیار
۳- د لنډو کیسو ټولګه تر کار لاندې.
۴- شعري ټولګه ( ناچاپ)

# عبدالصمد (غزنوي)



زه عبدالصمد «غزنوي» د عبدالرازق زوی د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ د دهگانانو د کلي اوسیدونکی په کال ۱۳۴۳ هـ ل کې په نوموړي کلي کې زېږېدلی یم.
په کال ۱۳۵۰ هـ ل کې د لمړنیو زده کړو لپاره د سلطان محمود لېسې لومړنۍ ښوونځي کې گډون او تر کال ۱۳۵۷ هـ ل پورې مې خپلې زده کړې له دوېم ټولگي څخه تر نهم ټولگي پورې په دوېمه درجه کې پای ته ورسولې خو دانقلاب د بدلونونو د رامنځته کېدو سره د کډوالۍ په بهیر روان او په پېښور کې د دارالانشاپه دفتر کې مې کار کاوه او له دریو کالو وروسته بیا بېرته وطن ته راستون او په عملي جهاد مې لاس پورې کړ، له درې نیمو کالو جهاد وروسته د

خپل منځي جګړو له امله بیاد سفر پنډه وتړله او تر کال ۱۳۸۰ هـ ل پورې د پاکستان د کراچۍ په ښار کې مې ژوند کاوه، چې په کال ۱۳۸۱ هـ ل کې د قره باغ ولسوالۍ د پوهنې مدیریت سره تړاو پیدا کړ چې همدا لړۍ تراوسه پورې دوام لري او اوس هم د قره باغ د پوهنې مدیریت سره تړاو لرم.

د کلام نمونه:

د سترګو رپ

زه یم باریک بینه یوه ذره راته لوی غر ښکاري
ماته د اسمان د اوبو څاڅکي سمندر ښکاري
عقل مې حیران شي چې ذرې د وړانګو وینمه
هره یوه ذره کې د جانان ښایسته بشر ښکاري
ناغ چې یې د خاورو وي او خاورو ته ورتېټ نه شي
سپین څلانده ستوری د اسمان د غره په سر ښکاري
دې دنیا کې خان دی که ګدا ،فقیر، ملنګ بابا
خاورو له چې ورشي لاروي د یو ګودر ښکاري

شعرونه ډېر لرم خو د اقتصادي ستونزو له امله و مې نه شو کولای چې یا یې چاپ او یا یې له کومې ادبي او کلتوري ټولنې ته د ګډون لپاره ورکړم.

# محمد ابراهیم (خاني خیل)




نوم مې محمد ابراهیم د پلار نوم مې حاجي محمد رحیم او تخلص مې خاني خیل دی چې په ۱۳۳۹ هجري لمریز کال کې د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ د خاني بابا په کلي کې دې نړۍ ته سترګې پرانیستې.
لومړنۍ زده کړې مې د علي هجویري په ښوونځۍ کې لوستلي او ثانوي زده کړې مې د سلطان شهاب الدین په لیسه کې بشپړې کړې دي ، د لوړو زده کړو په امید د خپلې خوښې او انتخاب سره سم د ژبې او ادبیاتو پوهنځۍ ته بریالی شوم. ددې پوهنځۍ په دوهم ټولګي کې وم چې د

وخت ناخوالو مې تحصيلي لړۍ پرې کړه او پخپل کور کېښناستم په دې وروستيو کلو کې درسمي دندو په لړ کې لومړی د غزني ولايت مرکز د سنايي عالي ليسې مدير او بيا د همدغه ولايت د پوهنې او روزنې رياست د نظارت امريت دنده راپه غاړه شوه، همدا راز د دووکلو راهيسې د سنايي ورځپانې په ترکيب کې هر ځل دوه مضمونه او مقالې ونډه لرم چې دا لړۍ مې د قلمي زيار په برکت جاري ساتلې او په مختلف ډول مې ډېر مضامين د هېواد په بېلابېلو خپرونو کې چاپ شوي .

د هدايې معتبر کتاب مې په پښتو ژباړلی او هم مې د وطن مينه ، او زما د نظر هينداره دوه ټولګي د چاپ په هيله پراته دي.

د کلام بېلګه :

معلم وپېژنئ

هغو چا چې د زمانې نوابغ روزلي او له کوچنيو شاګردانو څخه د طبيعت په برلاسی د غرونو ورمېږونه مات کړي او بحر فضا يې د يوې منډې ميدان کړه دا دمعلم نوښت ګره ښوونه ده .

هغو چا چې تهذيبي هنګامې ګرمې کړې د طبيعت رنګ او ونګې ته يې تغير ورکړل، په مجهولاتو يې ساينسې او فلسفي عملي د تجربې له قلمرو سره ويستلي دا ښاغلی معلم دی.

هغه څوک چې د الله ګران رسول يې په انتساب وياړي او د ګمراه بشريت د لارښوونې لپاره معنوي ډېوه په لاس څمڅمنه لار روښانوي و پوهېږئ چې دا خيرخواه او خيرانديش معلم دی. د ننی دنيا او د عصري اټوماټيک قدرت د ابتکار جوګه او دحيرانوونکو ساينسي اختراعاتو لامل هغه ستر انسان دی چې په معلم سره شهرت لري چاته چې د زمانې لوی امپراطوران د تاج او بخت خاوندان د احترام په خاطر څوګامه د مخه د تعظيم سر ټيټوي او د لاس مچوني حق يې په ځان فرض ګڼي نو دا لوی شان معلم ته رسيدلی دی.

هغه څوک چې کری شپه د ښه مضمون شعر او فورمول په هيله لټ په لټ خوب حرام بولي ځکه سبا دشاګردانو د ځواب او زده کړې مسؤليت په غاړه اخيستی دی نو ګومان کوم دا سپېڅلې دنده معلم ته رسيدلې ده .

هغه څوک چې نه سره لري نه سپین نه بېلډینګ لري نه اپارتمان نه پېجارو لري نه لنډکروزر ولې دا هرڅه دده د هڅو او هاند په نتیجه کې د بشري سعادت لپاره پېرزو شوي دي نو دا سخي او پېرزو کړی شخص معلم دی. له هلکتوبه تر ځواني او له ځوانی تر مرګه دده هغومره مزد چې دیوې غوړې مړی او اوبو ذمه نه شي وهلی حتی پس له مرګه هومره پانګه نه لري چې د کفن غمه یې وخوړه شي دا څوک دی دا افغانی معلم دی او معلم دی.

# محمد هاشم (بهادري)



نوم مې محمد هاشم تخلص مې بهادري د پلار نوم مې مولوي بهادرخان د غزني ولايت د قره باغ د ولسوالۍ د باران کلا د کلي اوسيدونکی يم. ايله مې تر اووم ټولګي پورې زده کړې کړې دي او نور د انقلاب د ناخوالو له کبله له رسمي زده کړو څخه بې برخې پاتې شوی يم. په ۱۳۲۱ هجري لمريز کال کې پېښور ته لاړم او هلته مې کلتوري نړۍ ته مخه کړه ، د ځينو ښو ليکوالانو او شاعرانو تر اغېزې لاندې راغلم او ورسره پخپله هم ليکنو اوشعر ته وهڅېدم او له هغه راهيسې مې خدای شته يو څو شمېر ليکنې کړې دي. په ۱۳۷۲ هـ ل کال کې د کندهار د طلوع افغان اوونېزې مسؤل شوم او په ۱۳۷۷ هجري لمريز کال کې د غزني ولايت د سنايي اوونېزې مسؤليت دنده راپه غاړه شوه. په کال ۱۳۸۸ هـ ل کې د غزني راډيو مسؤل او په ۱۳۸۱ هـ ل کال کې مې د غزني په راډيو تلويزون کې د وياند او ليکوال په توګه دنده درلوده خو اوس مې د يو شمېر کورنيو ستونزو له امله رسمي د نده نشته .

یوه وړه شعري ټولګه او یو ژباړلی کتاب د چاپ لپاره تیار لرم او د بیا لپاره به انشاءالله د قلم خوځولو ته دوام ورکړم.

د کلام بېلګه:

خدایه څومره وي، ظالم خمار د سترګو
نه روغېږي په درمل ګذار د سترګو
نه روغېږي د دنیا په دارو ګانو
خدای دې نه که څوک په زړه بیمار د سترګو
خدای دې څوک د تورو سترګو هدف نه کړي
خطا نه ځي له هدفه وار د سترګو
د د وزخ د اور له زوره پناه غواړم
ما لیدلی په دنیا کې نار د سترګو
د یوه نظر سوغات یې عاشقي وي
ګوره عین پادشاهي وي کار د سترګو
د نړۍ ګلونه واړه ښایسته وي
ولې نه به شي پیدا ګلزار د سترګو
دا پیغام مې هغو سترګو ته حضور کړه
د هاشم ځواني دې شه نثار د سترګو

د لیکوال اثار:

۱- اسلامي وروروالي څه شی ده؟ (ناچاپ) (له فارسي څخه پښتو ته ژباړه)
۲- د ماشوم روزنه. (ناچاپ) (له بېلابېلو کتابو څخه ژباړه)
۳- شعري ټولګه. (ناچاپ)

# محمد هاشم (عثماني)



زه محمد هاشم ((عثماني)) د عبدالحق خان زوی د غزني ولايت د اندړو ولسوالۍ د خاني بابا د کلي اوسيدونکی يم. په ۱۳۳۰ هـ ل کال کې مې د وجود بنياد کېښودل شو، تر دولسم ټولګي پورې مې باقاعده زده کړې کړي د د ولسم ټولګي له فراغت وروسته مې د ګران هېواد د خدمت لپاره ملتې را بنه وهلي نژدې ۳۲ کال مې په بېلابېلو پوستو ماموريتونه تر سره کړي دي او هم مې په دې اوږد ه دوره کې د قلم يارانه ټينګه ساتلې، تل مې د هېواد له جريدو او ورځپاڼو سره همکاري کړې. په غزني کې د زمزمه جريده چې زما ابتکار يو څه خلا ور وبښله او اوس مې ډېرې کتابچې په طنزونو، لنډوکيسو او ادبي مضمونونو ډکې کړې دي او دچاپ لپاره يې لاس تر زنې ناست يم.

څنګه چې زما مضامين اوږده دي نو له همدې کبله و مې نه شو کړای چې په دې ځای کې يې د نمونې په توګه ور وړاندې کړم.

د لیکوال اثار :

اثار مې تراوسه په مجلد ډول نه دي چاپ شوي خو په مختلف ډول يې د هېواد په اکثرو مجلو او جريدو کې مې ليکنې خپرې شوي دي.

که چېرې وخت راسره ياري وکړه نو په راتلونکي کې به خپلې ليکنې د يو کتاب په ډول لوستونکو ته په مخ کې کېږدم، تر هر څه په طنز ليکلو کې مې قلم خپله څوکه خورا په مهارت سره کنبل کوي.

# محمد گل (کوچی)




محمد گل کوچی د وکیل محمد جان کوچي زوی په کال **۱۳۳۵** هجري لمريز کې د کوچيتوب د لالهانده ژوند په بهير کې زېږېدلی يم. له لومړی څخه تر دولسم ټولګي پورې مې د کابل د رحمان بابا په ليسه کې زده کړې ترسره کړي او دليسانس ديپلوم مې په لومړی درجه د ادبياتو او بشري علومو پوهنځی د پښتو ژبې او ادبياتو په څانګه کې ترلاسه کړی دی. د ژبو او ادبياتو د ماستري د لومړي دورې ( **۱۳۴۲ - ۱۳۵۲** ) ممتازو فارغانو د کانکور په ازموينه کې د عمومي اول نمره په توګه بريالی شوی وم. خو په ګران هېواد کې د کمونستي فتور د ناوړه شرايطو او ناخوالو له کبله مې په بشپړه توګه دغه تحصيلي دوره پای ته ونه شوه رسولی.

له **۱۳۵۲** هـ ل کال څخه تر **۱۳۵۸** هـ ل کال پورې د پښتو د نړيوالو څېړنو مرکز د علمي غړي په توګه دنده ترسره کړې ده.

له ۱۳۸۰ هـ ل ښخه تر ۱۳۸۱ هـ ل کاله پورې د غزني د ښوونکو روزنې د مدير او دسنايي ليسې د استاد په توګه.
له ۱۳۸۱ هـ ل ښخه تر ۱۳۸۴ هـ ل کاله پورې د غزني ولايت د پوهنې ريس په توګه دنده ترسره کړې، همدارنګه مې د غزني ولايت د فرهنګيانو د يووالي د ټولنې او د غزني د کوچي قومونو د شورا د افتخاري رياست دندې ترسره کړيدي.
د بېړنۍ لويې جرګې او د اساسي قانون د تصويب په لويه جرګه کې مې د غزني، پکتيکا او باميانو ولايتونو د منتخب استازي په توګه ونډه اخيستي ده.

د کلام نمونه:

عقل به اېرې کړم ، که مې ګران وطن ودان شي
د پوهې په ګينه باندې مې ښکلي افغانان شي
عزت د ځان او قام دی، په کمال پورې تړلی
چې يې جهل شي په برخه، نو غلام د نور جهان شي
دا لويدلی ولس خدايه، له سيلانو سره سيال کړې
د ژوند لوی آرمان مې دادی، که مې سر دغه ارمان شي
د وروري احساس پيدا کړې، ددې خاورې په بچو کې
ځو د کرکې ټغر ټول شي، په کې جوړ امن و امان شي
دا مو کور دی ، دا مو ګور دی، دا مو روح دی، دا موتن دی
هغه لاس تر مټو شنه کړې، چې پيرزو يې په تاوان شي
ژېړ ګلونه د ګلشن مو، خزانېږي، لارژېړي
ځکه اوښکې لارې، لارې، مې راتويي په ګرېوان شي
په (کوچي) به دوباره شي، هغه تېره ځواني غبرګه
چې تباه او پوپنا يې، له رمې خونې ليوان شي

۱۳۸۵هـ ل کال د تلي اوولسمه

د لیکوال ناچاپ اثار:
۱- په اوسنیو کوچیانو کې د پخوانیو اریایانو کلتوري بېلګې
۲- د ستړې قافلې په نوم د اشعارو جونګ
۳- په ځینو شرقي ادبیاتو کې د شاعرانه تصلفاتو (باتې) بېلګې.
او په سلګونو نورې علمي او تحقیقي چاپ شوې مقالې او مضامین.

# محمد عارف (روان)



زه محمد عارف روان نژدې اته ویشت (۲۸) کاله وړاندې د اندړو په ولسوالۍ کې دې دوړنې نړۍ ته د ژوند لومړنۍ ګام د محمد رسول خان په کهاله کې کېښود، هغه د انقلاب په سوځنده بټۍ کې مې د ځوانۍ ترخې او خوږې سبا کړې د کلیوالي محیط په چاپېریال کې مې لومړنۍ ابتدايي دوره ولوستله د زیاتې معنوي لړۍ د استحکام په اړه مې لیسه او پوهنځۍ د کابل په زړه کې بشپړه کړه، څنګه چې ځانګړې دنده مې ژورنالیستي او دیپلوماتیکې زده کړې دي نو له فراغته سره جوخت مې د غزني ولایت د اطلاعاتو او کلتور په ریاست کې د آژانس په لوی مدیریت کې ومنل شوم او ورسره د راډیو تلویزون د پښتو او دري ژبو د نطاق دنده ترسره کوله، او د نطاقۍ په اصولو اړوند کرکټرونه د ډېرو لپاره په زړه پورې وو او په لنډ وخت کې مې د

دغه ریاست په ډېرو پوستو کې مې قلم وچلېده او اوسنی وظیفه مې د ټول ریاست د اداري چارو مدیریت خدمت دی او همداراز اوسمهال د زمزمه د مدیر مسؤل په حیث کار کوم.
ازادی او خپلواکی سره مینه لرم او له ټولنیزې بدبختی ځخه رنځ وړم. د هېواد د بیا ودانول او د ځوانانو هڅې په دې برخه کې لازمې گڼم او دا هیله لرم چې افغانستان د سولې او روغې په رڼا کې پرمختگ وکړي. له ادب او کلتور سره مې هم مینه زیاته ده شعرونه او لیکنې لیکم.

د لیکوال د کلام نمونه:

دیار خیال

خیال چې د یار راشي واړه خیال راځنې تښتي
سترگې یې رایادې کړم هلال راځنې تښتي
اثر دکوم جادو ده چې پرې هسې زه شیدا یم
هر څه رانه هیر شي سر او مال راځنې تښتي
د حسن قافلې یې همیش ما لوټ او تالاکا
په مینه کې یې عقل او کمال را ځنې تښتي
تازه نوی بهار یم زه دخیال له برکته
شړلی مې خزان ده او شمال راځنې تښتي
جانانه زه دې کړمه سکنی ورور د مجنون
دا ستا له حسنه پرته نور جمال راځنې تښتي

چاپ شوي اثار نه لرم خو ناچاپ اثار مې ځنې مقالې او شعرونه دې چې لا تراوسه راټول شوي نه دي.

# محمد زمان



زه محمد زمان د ارواښاد حاجي محمدانور زوی چې په کال ۱۳۴۱ هـ ل د قوس په ۱۴ نېټه دچهارشنبې په شپه د قلعه نو خواجه روشنايي غزني په کلي کې دې نړۍ ته سترګې وغړولې. او په همدغه کلي کې اوسېږم . د سنايي عالي ليسې د دولسم ټولګي څخه په کال ۱۳۵۹ هـ ل کې فارغ شوی يم او د امنيتي ستونزو او دشوروي اتحاد د تيري له کبله له لوړو زده کړو څخه پاتې شوم. د ښوونځۍ له دورې څخه تراوسه ليکنې ليکم چې دا ليکنې په پښتو، دري ژبه باندې دي چې داستانونه، ټوکې او تمثيلي کوميډي پارچو څخه عبارت دي.

د کلام نمونه :

## د ورکې یو ضروري اعلان (طنز)

یوه اندازه پیسې او یو عدد موبایل د جنت گل ماما څخه د ولایت او قوماندانۍ د سرک ترمنځ ورکي شوي دي او که چا پیدا کړي وي، نو دخپل ایماني او وجداني وجیبې په لحاظ دې دغه موبایل په خپل پوښ کې دې ښه وساتي او گرد او غبار ته دې دهغه پر مخ اجازه نه ورکوي ځکه زه خفه کېږم هو یوه خبره مې اوس فکرته راغله چې د کوچنیانو د لاس څخه یې وژغوري ځکه ماشومان یې په قدر نه پوهیږي او بې موجب یې توکړې توکړې کوي، او بله دا چې تر هغه مې هم بله ضروري خبر را په یاده شوه چې پیسې د ضرورت په اندازه مصرف کړئ ځکه چې بې ځایه مصرف کول اصراف عمل دی تاسې خبریاست چې اصراف په شریعت کې یو ناروا کار دی خدای مه کوه چې گنهگار نه شي موږ د دغه اعلان په اورولو سره تاسو مبارک حضورته ډاډ درکو چې اجناسو د پیداکولو په وخت کې هیڅوک هم په خپلو سترگو لیدلی نه یاست که مو له دې کبله کوم تشویش زړه ته لویدلی وي او زړگی مو ناقراره وي او یا مو خپل اصلي رنگ د مخ څخه الوتی وي نو ددغه راډیو یې اعلان په اوریدلو سره مو خپل طبعي عادي حالت ته راوگرځئ، اوس ستاسې کولای شئ چې په مستقیمه توگه لکه خپل مال دشیانو څخه استفاده وکړئ ځکه ددغه اجناسو پیداکول ستاسو د سترگو او فکر کمال او حاصل دی موږ خپل غاړه نه بندوو موږ د هوا دڅپو له لارې د ورکې د اعلان د اورولو نه وروسته ستاسو د گران حضور نه رخصت غواړو، د محشر تر ورځې پورې خدای په آمان ..

آثار :

زما لیکنې په تیت او پرک ډول د سنایي په اخبارو کې او په نیسان مجله کې چاپ شوي دي خو په مجموعي توگه د اقتصادي ستونزو له امله نه دي چاپ شوي.

# نصرالله (رحیمي)




نصرالله ((رحیمي)) د متقاعد ولسوال عبدالکبیرخان زوی په ۱۳۵۳ هـ لمریز کال د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ د یعقوب په کلي کې زېږېدلی یم. لومړنۍ زده کړې مې د کابل ښار د جمال مینې په لومړني ښوونځي کې پیل کړي او بیا مې د جنګلګ (باغ رئیس) د ایمني په منځني ښوونځي کې زده کړو ته دوام ورکړ او په ۱۳۷۱ هـ ل کال کې د کابل ښار د حبیبې د عالي لیسې څخه فارغ شوم.

د کورنیو جګړو له امله مې هماغه کال خپل پلرنی ټاټوبی یعنې د غزني ولایت د اندړو ولسوالۍ ته کډه وکړه. وروسته د یو لړ ستونزو له کبله د لنډې مودې لپاره د پاکستان د کویټې ښار ته لاړم، بیا مې د ناسمو حالاتو له امله ونشوای کولای تر څو په لوړو زده کړو پیل

وکړم، نو مې په ۱۳۷۴ هـ ل کال د خپل کلي په شهید مولوي سلطان محمد لیسه کې د ښوونکي په توگه دنده پیل کړه.

په کال ۱۳۷۸ هـ ل کې مې د کانکور په آزموینه کې گډون وکړ او دخپلې خوښې سره سم د کابل د طب انستیتوت د اطفالو د طب پوهنځی په ۱۳۷۹ هـ ل کال پیل کړ او اوس د کابل د طبي پوهنتون د نوموړي پوهنځی د وروستي سمستر شپې او ورځې سبا کوم.

د ښوونځی پر مهال مې له ادب سره مینه درلوده کله نا کله به مې د حبیبې په لیسه کې او همدارنگه د ایمني په منځني ښوونځي کې ادبي غونډو ته ځان رساوه چې ځینې لنډې مقالې او شعرونه مې د کابل په جگړو کې د اور خوراک شول.

دادی بیا مې هم د پوهنځی په دوران کې شعر ته مخه کړې تقریباً د پنځوسو په شاوخوا کې معاصر شعرونه او غزلې لرم، ځینې شعرونه مې په پیام مجله، هوسۍ او نورو مجلو کې چاپ شوي دي او که خدای (ج) کول په راتلونکي کال کې به مې یوه شعري ټولگه چاپ ته تیاره شي.

د شعر یوه بېلگه:

بې وفا دردونه

خوبونه بې وفا شول، خیالونه بې وفا شول
داغونه ستا د مینې پرهرونه بې وفا شول
نن منی راستون شوی زما د زړه په چمنونو
پسرلی بې وفا شو سره گلونه بې وفا شول
تا سترگې تورولي زما زړگی ؤ پرې روښانه
د سترگو به څه وایم کجلونه بې وفا شول
زما د بخت هما الوتی د بې پایه هسک تیارو ته
مخ دې پټ کړ په حجاب کې دیدنونه بې وفا شول
غمونه دې راسر شول زیروبم یې رانه ورک شو
سازونه دې په غم کې ربابونه بې وفا شول
داغونه د زړگي مې مسیدلي ستا په هجر

خوارہ دا ستا د مینې زما دردونه بې وفا شول
ما د عشق په تصور کې د بوډۍ ټال وو جوړ کړی
دا دبخت یاري به څه کړم بارانونه بې وفا شول
د شیریني تصور کې په فرهاد پسې روان شوم
ددې لارې لاروي ته تور تور غرونه بې وفا شول
احساس مې غلی شوی ځکه ستا هیلې شوې ګرانې
شعرونه بې وفا شول غزلونه بې وفا شول
د فلک ساقي جامونه ستا د مینې رانه تش کړل
رحیمي دا ستا و تندې ته خمونه بې وفا شول

د لیکوال او شاعر آثار:
د آثارو په هکله به دا ووایم چې ځینې مقالې په ټولنیزو او سیاسي مسایلو کې او همدارنګه د پنځوسو په شاوخوا کې د نوي شعر او غزل په بڼه چاپ ته چمتو لرم او په مناسب فرصت کې به یې چاپ ته وسپارم.

# محمد غني (بهادري)



زما نوم ډاکټر محمد غني بهادري د غزني ولايت د اندړو ولسوالۍ د نرمي بابا په کلي کې په کال ۱۳۳۴ هـ ل د لیندۍ په ۱۳ مه نېټه په يوه متوسطه کورنۍ کې زېږېدلی يم.
په ۱۳۴۲ هـ ل کال کې د اندړو ولسوالۍ د سلطان شهاب الدين غوري له ليسې څخه په اعلی درجه فارغ شوم او په همدغه کال کې مې د کانکور په آزموينه کې ګډون وکړ چې د کابل پوهنتون، طب پوهنځی ته بريالی شوم. په ۱۳۵۷ هـ ل کال کې له همدې پوهنځۍ له فراغت څخه وروسته په درېيم بست کې د ارزګان په ولايت کې د عمومي مدير دنده راپه غاړه شوه او تر ۱۳۵۹ هـ ل کال پورې مې نوموړې دنده ترسره کړه وروسته د مکلفيت د دورې د جلب په خاطر له وظيفې سبکدوش او دوخت د مزدور رژيم د عسکري تر خدمت مې د ملت او دين خدمت ته ترجيح ورکړه ولې د تنظيمونو د ذات البيني اختلافاتو له امله مجبور د هجرت او

بېطرفۍ ته شوم اوپه ۱۳۵۹ هـ ل کال د ایران او وروسته پاکستان ته اواره شوم او بلاخره په ۱۳۸۳ هـ ل کال کې وطن ته راغلم او اوس د ولایتي شورا غړی یم. دا چې وخت کم ده خپله یوه څلوربیتي د نمونې په ډول چې زما په اثر د ذهنونو غذا په نامه کتاب کې چاپ شویده په لاندې ډول ده .

یتیمان کونډې منتظر چې یې خیرخواه راځې
خبر نه دي چې خوار له کومې خوا راځې
د غر کنډوالۍ له په ژړا که په خندا راځي
د اغیار په قومنده که د حریت لخوا راځي

*******

ته چې هر څوک ولې او هر څه غواړې
د معقولیت او خدمت په گوله کې به یې نغاړې
خلک به دې وینې چې منطقي عملي ولاړې
بهادري دې ضمانت کړې چې خلاص له بلا راځي

*******

لکه څنگه چې ما مخکې یادونه وکړه چې کله زه له پوهنتون څخه فارغ شوم کوشش مې کاوه چې علمي تحقیقات وکړم حقایق په مستندو اسنادو تثبیت او د ټولنې د تنویر لپاره یې وړاندې کړم چې په دې اړوند مې لومړی اثر د مومن په ثبوت د ( ساینسي دلایلو په رڼاکې تر عنوان لاندې بشپړ، ولې د وخت د حکامو د تعقیب په اساس مې په زیرخانه کې پټ او هلته وروست شو.
وروسته مې یو بل کتاب ( د ټولنې بلاگانو ) تر عنوان لاندې ولیکه چې له سعودي نه پاکستان ته د راتلو په لارو کې د ورکې ښکار شو او له هغه نه وروسته مایوسه او زړه مې غوښتل چې نور څه ونه لیکم، خو بیا قلم منع نه شو او ( د ذهنونو غذا ) تر عنوان لاندې مې یوه شعري ټولگه او د ( انقلاب که انفلاق ) تر عنوان لاندې مې یوه نثري او شعري مختلطه په یوه



کتاب لومړی جلد کې پخپلو مصارفو چاپ کړه او دوهم جلد هم بشپړ شوی ولې چاپ شوی نه دی او سلسله یې دوام لري ..

# د پروان ولایت شاعران او لیکوالان



## رضوان الله ( همدرد )

زما نوم رضوان الله تخلص مې (( همدرد )) او د کورنۍ نوم مې سروري دی د شکرخان سروري زوی د ننګرهار ولايت د روداتو ولسوالۍ د کدی کلي اوسيدونکی يم چې پيدايښت مې په کال ۱۳۶۳ هـ لمريز کال کې د پروان ولايت په بګرام ولسوالۍ کې شويدی. چې لومړنۍ زده کړې مې د روداتو ولسوالۍ د کدی کلي د روغانو نومې لومړنی ښوونځی کې کړيدي چې د نوموړي ښوونځۍ له فراغت څخه وروسته په کال (۱۳۷۸) هـ ل کې د حصار کمزيني عالي ليسې ته ور وپيژندل شوم چې بيا په کال ۱۳۸۴ هـ ل کې د نوموړي ليسې څخه په اعلی درجه فارغ شوم او د ۱۳۸۴ هـ ل کال د کانکور ازموينې په پايله کې د لوړو زده کړو وزارت له خوا د البيروني پوهنتون د ژبو او ادبياتو پوهنځی ته ور وپيژندل شو م چې اوس مهال د همدې پوهنځی د انګليسي په څانګه کې خپلې زده کړې پر مخ وړم.

دا چې ما څنګه شعر ويلو ته مخه وکړه ددې پوښتنې ځواب به په يوه شعر او څو کليمو کې په لنډ ډول راونغاړم:

بېګاه مې خوب کې محبوبا وليده
ما په رښتيا خپله ليلا وليده
څه با ادبه حياناکه جلۍ
رضوان الله همدرده تا وليده

يعنې زما شعر ويل زما د مينې پورې اړه لري.

دکلام بېلګې:

غزل

بېګاه مې خوب کې محبوبا ولیده
ما په رښتيا خپله ليلا وليده
د ډېره نازه وه کړه روانه
په خپلو سترګو باندې ما وليده
ډېره حسينه او ښايسته ښکارېده
د ورايه ما چې د لربا وليده
خمارې سترګې يې پناه وې له ما
ځکه د وړاندې مې تر شاه وليده
زموږ د کور د دروازې په مخه
تلله خپل کورته چې مې بيا وليده
واړه واړه يې قدمونه وهل
د کلي مخ کې چې مې دا وليده
څه با ادبه حياناکه جلۍ
رضوان الله همدرده تا وليده

بله بېلګه:
مينه چې نه وي محبت چې نه وي
منځ د دوستانو کې محبت چې نه وي
د هغه ژوند نه به خوند څنګه واخلي
چا سره غم د آخرت چې نه وي

د پلار او زوی او د دوه ورونو تر منځ
تل جنګ، جګړې وي نزاکت چې نه وي
حق د یو بل به په څه وپيژني
موجود په منځ کې عدالت چې نه وي
خپله کړه لار سمولی نه شي
ورسره عقل کې طاقت چې نه وي
مال او دولت يې مړولی نه شي
غرق دی قارون دی قناعت چې نه وي
رضوان الله همدرد پرې څه ولیکم ؟
د چا ضمیر کې دیانت چې نه وي

د شاعر او ليکوال آثار:
زما لومړی شعري ټولګه «نیمګړې مینه» نومېږي چې تقریباً د څلوېښتو په شاوخوا کې شعرونه لري او د ټولګې په توګه نه ده چاپ شوې خو څو غزلې مې په مختلفو مجلو، جریدو او ورځپاڼو کې چاپ شوي دي لکه: ډالۍ مجله کې، مینه مجله کې....

# احمدضیا (ضیا)




احمدضیا ((ضیا)) د استانه گل زوی او د اخترمحمد لمسی، د لوگر ولایت دمحمدآغي ولسوالۍ د دوران خیلو په کلي کې په ۱۳۵۴ هجري لمریز کال کې زېږېدلی یم.

لومړنۍ زده کړې مې د اقاعلي شمس د هلکانو په منځنۍ ښوونځی کې په لومړۍ درجه سر ته رسولي دي. او بیا مې ثانوي زده کړې د حبیبي په عالي لیسه کې ترسره کړي چې د دولسم ټولگي څخه په لومړۍ درجه فارغ شوی یم او اوس د کابل پوهنتون د اقتصاد د پوهنځۍ د څلورم ټولگي محصل یم.

د زده کړې ترڅنګ د افغان ځوانانو د خپرونې مسؤل مدير، او د کابل پوهنتون د مجلې د ليکوالانو د هيئت غړی يم.
چاپ شوي آثار نه لرم، او د ناچاپو آثارو نومونه دادي:
۱- ما هم يوه جونګړه درلوده. (ناول)
۲- د افغانســـتان او منطقــې پـــه اړونـــد سياســـي او څېړنيـــزو مقـــالو ټولګـــه.

# احسان الله ( محسن )




نوم مې احسان الله (( محسن )) د پلار نوم مې اسدالله د لوګر ولایت د محمد آغې ولسوالۍ د شش قلعه عقبه کلي اوسیدونکی یم چې په کال ۱۳۲۹ هـ ل کې د پاکستان صوبه سرحد ، کهی کنډو د لوګریانو په کیمپ کې زیږیدلی یم، خپل ابتدایي زده کړې مې په کهی کې تر دریم ټولګي پورې سرته رسولي او له هغه نه وروسته په اسلام آباد کې او له هغه وروسته خپل وطن ته راستون شوم او په شپږم ټولګي کې مې داخله وکړه چې اوس د محمدآغې عالي لیسې د لسم ټولګي زده کوونکی یم.

له شعر او شاعرۍ سره ډېره مینه لرم او شعري مجموعه مې ( ۱۳۵ ) شاوخوا ته رسیږي او زیاته عشقي بڼه لري، په راتلونکي کې غوارم چې چاپ ته يې تیار کړم او چاپ یې کړم.

د کلام بېلگه:

### بېلتون

ته چې ولاړې زه به ځنگه وکړم
چې نه مې غواړې زه به ځنگه وکړم
یاد ېږي به مې هر وخت ستا دا تورې سترگې
دا په غم لړلې دې رنجورې سترگې
ستا ښایسته، ښایسته زلفان به مې یاد ېږي
کاږه بانه دې لکه غشی د کمان به مې یاد ېږي
یار مې ځي د مینې جام مې چپه کېږي
په عشق چې مې درلود هغه مقام مې چپه کېږي
(محسنه) د بېلتون کور دلته ودان شو
ښکلی یار دې پاتې ستا د شعر په آرمان شو

### قطعه

چې موسکۍ شي چې د سترگو لاندې گوري
داسې چې راتاو کړي خپل خمارې سترگې
زه هم موسکۍ شم درته وگورم د سترگو لاندې
د نرگس غوندې خمار لري مکارې سترگې

کوم چاپ شوی آثار نه لرم بلکې یوه شعري ټولگه چې مخکې مې یادونه وکړه د هغه شعرونو شمېر یې تقریباً (۱۳۵) شاوخواو ته رسېږي. او په راتلونکې کې غواړم چې ځو نور شعرونه هم ولیکم او ترتیب یې کړم چې د چاپ لپاره تیار شي او له چاپه یې راوباسم.

# بسم الله ( نیازی)




بسم الله (( نیازی )) د سردار خان (( نیازي )) زوی په ۱۳۲۴ هـ ل کال کې د لوگر ولایت په مرکز د نیازیو په کلي کې زېږېدلی یم. لومړنۍ زده کړې مې د هارون خیلو په کلیوال ښوونځي او کلنگار ابتدایه مکتب کې او وروسته د هوانوردی ملکي لیسې څخه فارغ شوی یم.

د لیسانس زده کړې د هواپېژندنې او هوانوردی په برخه کې د هندوستان په فونه ممبې، بنگلور، حیدرآباد او ډهلي کې کړیدي او نورې تجربوي زده کړې مې په ایران، سنگاپور او تایلنډ کې پای ته رسولي.

تقریباً د ېرش کاله کېږي شعر لیکم، چې په سلگونو شعرونه مې لیکلي خو په کورنیو جگړو کې وسوځېدل او له منځه ولاړل خو اوس هم شعر لیکم او همدارنگه د نیازیو د انکشافي شورا رئیس او دمحلي شورا غړی یم.

د شعر بېلګه:

په کنده مځکه پراته دي په خيمه بې وارې اوري
ماشوم له يخه مړ شو د مورکۍ يې واويلا راځي
کنډواله د مراجي کې انسانان وږي پراته دي
تودې وږمې د کباب له هوټل سرينا راځي
په کورو بمبونه اوري د توپونو غړمبهاره
ماشوم په چيغو چيغو له مکتبه وارخطا راځي
د مجنون زيارت ته ولاړه په مين والوته ليلى
مشال يې سور په وينو له هوا په رپيدا راځي
اختر خو راروان ده د مصرف پيسې نشته
معلم بيچاره ګورې سرمايي ته په رښتيا راځي
د دريا په جرم باندې ناوي وخوړې لغتې
شاه کيبل کاري شو سر قيچي شو له قضا راځي



زيات شعرونه مې وسوځېدل او نوي شعرونه مې هم ليکلي چې تراوسه يې دچاپېدو زمينه نه ده برابره شوي، که زمينه مساعد شي غواړم د کتاب په بڼه يې چاپ کړم.

# حبیب الله (ستانکزی)



زه حبیب الله ستانکزی د محمد عظیم زوی د لوگر ولایت د محمدآغې ولسوالۍ د تاج خان دکلي اوسیدونکی یم. لومړنۍ زده کړې مې تر اتم ټولگي پورې د پېښور د شمشتو په کمپ کې د حضرت قیس بن سعد رض په عالي لیسه کې بشپړې کړې چې په کال ۱۳۸۳ هـ ل کې له پېښور څخه خپل گران هېواد افغانستان ته راستون شوم چې اوس د محمدآغې په عالي لیسه کې د یوولسم ټولگي زده کوونکی یم.

د کلام بېلگه:

## ښاپېرۍ

د پسرلي ښکلې هوا چلېده، مرغانو د پسرلي په راتګ سره يو بل ته د خوشالۍ زيرۍ ورکولو په هر بڼ کې د مرغانو اوازونه او سندرې اورېدل کېدې، خو جانان اکا د پسرلي په راتګ سره خوشاله ؤ خو له بلې خوا د خپل ژوندون څخه بېزاره ؤ ځکه چې غريبۍ خپله مخه ورته ډېره پرانيستۍ وه. جانان اکا دوه زامن او يوه لور درلوده چې نوم يې ښاپېرۍ وه، هو! په رښتيا هم ښاپېرۍ وه هغه ډېره ښکلې وه چې سپوږمۍ هم نه شواى کولاى د ښاپېرۍ د ښايست ډيوې د خلکو په زړونو کې مړې کړي.ټولو کليوالو غوښتل چې د جانان اکا زوم شي، ښاپېرۍ ډېر ريباران لرل داسې ورځ به نه وه چې د جانان اکا کور د ريبارانو څخه تش وي. ښاپېرۍ غوښتل چې د دولسم ټولګي د فراغت سند لاس ته راوړلو څخه وروسته واده وکړي، مور او پلار يې هم د ښاپېرۍ په رضا د هغې ريبارانو ته ځواب ورکولو.

يوه ورځ ښاپېرۍ د ښوونځۍ په لور روانه وه چې ګوري يو هلک چې لوړه ونه ، تور وېښتان، نرۍ خط او کندهارۍ خولۍ يې پر سر درلودل ورته ولاړ دی خو ښاپېرۍ د هلک له مخې لکه لګړه تېره شوه. ځو ورځې همداسې تېرېدې ښاپېرۍ هم د خپل ښايست په اور خلک سوځول خو له ځانه خبره نه وه چې څومره خلک يې په جادويي سترګو ويشتلي دي، کله به آينې ته ودرېده په خپل حسن به نازېده له ځان سره به لګيا شوه: د غريب لور او دومره ښايست؟ بيا به له ځان سره وبنګېده چې ښايست د خداى ج ورکړه ده غريب او خان نه غواړي، بيا به په منډه له کوټې څخه ووته د مور سره به د کور په کارونو اخته شوه، يوه ورځ چې د ښوونځۍ په لورې روانه وه هدايت الله د موقع نه استفاده وکړه يو خط يې د ښاپېرۍ مخ ته واچاوه، ښاپېرۍ هدايت الله سر ترپايه وڅاره خط يې را اوچت کړ او بېرته د کور په لور وخوځېده، کور ته په رسېدو سره يې د ليک سر خلاص کړ چې داسې يې ليکلي ؤ: «په سلامونو مو لمانځم! ګرانې پوهېږې چې زه دې دعشق په لمبو سوځم! نه ته نه پوهېږې مګر زه پوهېږم چې ستا ښکلا ماته د مرګ زېرۍ راوړي. ګرانې! يوازې ته کولاى شي ته مې له دې مرګ څخه وژغورې، ګرانې! زارې کوم زما مينه ومنۍ.» له ليک ويلو څخه وروسته ښاپېرۍ د سوچونو په درياب کې ډوبه شوه

له ډېرو سوچونو څخه وروسته ښاپېرۍ په دې سلا شوه چې خپل زړه هم دمينې په اور سوځولو ته چمتو کړي. څو ورځې وروسته ښاپېرۍ بيا د ښوونځۍ په لور رهي شوه چې ګوري هدايت الله يې په انتظار کې دی. ښاپېرۍ زړه د زمري کړ اوهدايت مخې ته ودرېده، هدايت الله دا وانګېرله چې ښاپېرۍ به مې اوس د سپي له لکۍ څخه هم وباسي، خو دښاپېرۍ د سرو شونډو قلفونه يو له بل څخه ښکته او پورته ولاړل ، دغه نغمې يې له خولې څخه راووتې: ستاسو ليک مې ولوست زه ستاسو مينه منم. هدايت الله له ښاپېرۍ څخه د داسې خبرو طمع نه لرله د فکر په درياب يې ځان لاهو کړ يو څه چوپتيا څخه وروسته ښاپېرۍ وويل : تاسو زما په مينه شک مه کوئ، له څه خبرو وروسته يو له بل څخه رخصت شول. ورځې همداسې تېرېدې، د هدايت الله او د ښاپېرۍ دوه مياشتې وشوې.يوه ورځ ښاپېرۍ هدايت الله ته داسې وويل : هدايت الله جانه! سبا دې خپل مور او پلار زما ريبارۍ ته راولېږه، تر څو به ناست يو.
هدايت الله هم د ښاپېرۍ خبره ومنله، يو له بل څخه رخصت شول. هدايت الله د ښاپېرۍ د ريبارۍ خبره خپل مور او پلار ته واوروله. د هدايت الله مور هم خوښه کړه او وې ويل:زويه ! ګومان مې نه کېږي چې دا وړې دې شرې شي. ښاپېرۍ خو ډېر ريباران لري بيا جانان اکا کله به په مونږ ښاپېرۍ ولوروي، جانان اکا ډېر ماړه ماړه ريبارانو ته ځواب ورکړ، بيا پاتې مونږ!!! زويه ! له دې خبرې تېر شه يو بل ځای به درته وګورو.
هدايت الله وويل : خير ده مورې! ته يو ځل ورشه چې څه وايي که يې ونه منله بل ځای خو شته.
د هدايت الله خبره يې ګذار نه کړه، ماسپښېن مهال د هدايت الله مور او دتره ښځه يې د ښاپېرۍ د کور په لورې وخوځېدل، کور ته په ننوتلو سره ښاپېرۍ ريباران وپېژندل، د ښاپېرۍ مور ريباران د ناستې خونې ته وروبلل، ريباران په خونه کې کېښناستل. د چای څښلو په ترڅ کې د هدايت مور داسې وويل: د ښاپېرۍ مورې! مونږ غواړو چې تاسو سره خپلوي وکړو اوستاسو لور خپل زوی هدايت الله ته په نکاح کړو، ستاسو څنګه خوښه ده ؟
د ښاپېرۍ مور وويل : صحيح ده، زه به د ښاپېرۍ پلار سره په دې خبره وغږېږم، يو څه خبرو اترو څخه وروسته ريبارانو ته د بيا راتګ بلنه ورکړل شوه. کله چې دا خبره جانان اکا ته ياده شوه جانان اکا له ښاپېرۍ څخه د هغه رضايت پوښتنه وکړه . ښاپېرۍ وويل:ستاسو خوښه زما خوښه ده .

شپه تېره شوه د ګهيځ لمر خپلې شعاعوې د ځمکې په هر لورې خپرې کړې. د سبا ناری څخه وروسته ريباران دجانان اکا په کور ورننوتل، له روغبړ او چای څښلو وروسته بيا د ريبارۍ خبره ياده شوه، د ښاپېرۍ مور وويل : موږ هم غواړو چې تاسو سره خپلوي وکړو، مګر په دې شرط چې هدايت الله به څلورلکه ولور مني. دهدايت الله مور هم دغه خبره ومنله. کله چې هدايت الله سره د څلور لکه ولور خبره ياده شوه،هدايت الله د پرخوښ شو مور ته يې وويل : زه ددې ولور پوره کولو لپاره به ايران ته ولاړ شم يو نيم کال وروسته به بېرته راشم، خو ته ضرور د جانان اکا څخه شيريني راوړې. مور يې وويل :هغوی وايي چې زه تر هغه شيريني نه درکوم تر څو هدايت الله ماته پوره ولور رانه کړې، خو زه هم بل چاته شيريني نه ورکوم.

څو ورځې وروسته هدايت د ايران د سفر موزې په پښو کړې له خپل کهول او ښاپېرۍ سره يې مخه ښه وکړه او دايران په لوري د يو عالم اميدونو سر د تهران ښار ته ورسيد او په کار او بار يې شروع وکړه ، خو هدايت الله خپل برخليک څخه نه ؤ خبر، کاشکې هغه خوار خبر وای.

يوه مياشت وروسته د جانان اکا په کور نوي ريباران ورغلل هغوی سره يې د ښاپېرۍ د شيريني ورلو په هکله وغږېدل. د ښاپېرۍ مور ريبارانو ته وويل : موږ غواړو د هدايت الله او ښاپېرۍ راتلونکی ژوند د دوی په خوښه جوړ کړو اوس مو هدايت الله سره خبره کړېده هغه اوس د ولور پوره کولو لپاره ايران ته تللی دی. کله چې هدايت راشي موږ هغوی ته شيريني ورکوو. يو ريبار داسې ورغبرګه کړه : ګوره د ښاپېرۍ مورې ! تاسو ته ښه معلومه ده چې زما زوی ( جاويد ) په لندن کې اوسيږي او دا هم درته معلومه ده چې د هدايت کورنۍ غريبه کورنۍ ده او تراوسه مو شيريني هم نه ده ورکړې څومره ولور چې هغوی درکوي موږ به د هغه ولور څخه زيات درکړو. کله چې د نوي ريبارانو خبره جانان اکا سره ياده شوه جانان اکا پرته له دې چې سوچ وکړي په دې خبره خوښي څرګنده کړه او پرته د ښاپېرۍ له رضايت څخه شيريني جاويد ته ورکړه. درې مياشتې وروسته د جاويد او ښاپېرۍ د واده مراسم چمتو شول د واده څخه درې مياشتې وروسته جاويد غوښتل چې ښاپېرۍ له ځان سره لندن ته بوځي خو د ښاپېرۍ رضايت نه ؤ.

جاوید ښاپېرۍ په دې رضا کړه چې ورسره لاړه شي، ښاپېرۍ هم بله چاره نه درلوده او جاوید سره د لندن په لورې ولاړه.

یو نیم کال وروسته هدایت الله د ایران څخه د خپل هېواد په لورې راوخوځېد، له څو ورځو څخه وروسته خپل کور ته راورسېد، د هدایت الله مور د هدایت الله په لېدو سره چغې او نارې پیل کړې او داسې یې وویل: زویه! ته خو داسې بد قسمته نه وې ستا بخت ولې مړ شوی دی!

هدایت ورته وویل: مورې آخر څه خبره ده ولې ژاړې؟

مور یې ورته وویل: هدایت جانه! هغه ښاپېرۍ چې ته یې د ولور پوره کولو لپاره ایران ته تللی وې هغه د جاوید په ډولۍ کې لندن ته یوړل شوه او دجانان اکا خوله یې د پیسو څخه ور ډکه کړه. ددې خبرې په اورېدو سره د هدایت سر و څرخېد او په ځمکه وغورځېد. هدایت الله یې روغتون ته یوړو. کله چې په سد شو سترګې وغړولې که ګورې په روغتون کې دی، له سترګو یې مرې اوښکې وبهېدې او ویې ویل: جانان اکا خو ویلې ؤ چې زما لور به د ستا وي او ښاپېرۍ ولې بې وفا شوه!

له څلور میاشتو وروسته ښاپېرۍ خپل پلار ته یو لیک راولېږه چې لیکلي ؤ: «ګرانه پلاره! افرین زما ژوند ته دې خوښې راوښله. په هغه ورځ چې د افغانستان څخه د لندن په لورې رهي شوم کله چې د لندن په هوایي ډګر کې کوزه شوم، جاوید سره د خپل کور ته ولاړم له څو ورځو وروسته یو بوډا سړی زموږ کور ته راغی له جاوید سره په انګلیسي ژبه وغږېده چې زه پرې ونه پوهېدم، بیا یې زما لاس د هغه بوډا په لاس کې ورکړ، جاوید ته مې وویل: چې لیونی شوی یې او که څه؟

جاوید په کړس، کړس وخندل، نه زه نه یم لیونی شوی، ستا پلار لیونی شوی چې خپل لور یې بوډا ته ورکړېده. ستا پلار زما په غوړو خبرو وغولېد مګر ستا پلار ته ماته نه بلکې دغه بوډا ته په نکاح کړې یې!

اوس دغه ستا خاوند دی ګډ ژوند مو مبارک شه، څه ورځه.

چهارشنبه، ۱۳۸۵\۲\۲۷

اوس مهال زه (۲۳) په بېلابېلو موضوعاتو ليکلي داستانونه او (۴۲) مختلف شعرونه په لاس کې لرم، که په راتلونکي کې وتوانېدم د کتاب په بڼه به يې د ګرانو هېوادوالو په واک کې ورکړم.

## روح الله (امين)



زه روح الله ((امين)) د شهيد نورالله زوی د لوګر ولايت د محمدآغې ولسوالۍ د مغل خيلو د کلي اوسيدونکی يم اوس په يوولسم ټولګي کې په زده کړه بوخت يم.

د شعر او ادب سره مې ډېره مينه ده او د يو نيم کال راهيسې زه په خپله شعرونه ليکم او غواړم چې د شعر او ادب له لارې خپلې مورنۍ ژبې ته د خدمت مصدر وګرځم.

د کلام بېلګې:

دا موسم د ښکلا — دا د ښکلا ناوکۍ
دا له غمونو خلاصه — دا دخپل يار ناوکۍ
چې خزان پرې راشي — شوه په ژړا ناوکۍ
ويلې جانان مې څه شو — اشنا ، اشنا ناوکۍ
چې شوه په غمونو ډوبه — د ناز او ادا ناوکۍ
کړې يې خاورې په سر — دې د جانان ناوکۍ
دا وه د يو ځوان ناوکۍ
پاتې آرمانونو کې شوه — دا د آرمان ناوکۍ

گيله

نذيره درته راوړې مې لږ شانتې ګيلې دي
يو څو خبرې مې د شعر په ژبه، ځنې خوږې ځنې ترخې دي
که مو خوښ شي او قبول يې کړې دا
ما «امين» درلېږلې څو شډلې ترانې دي

غزل

هر طرفته راته ښکارې چې تيارې شوې — زما زړه کې ياره جوړې تورې شپې شوې
اى نصيبه ولې ته دومره ظالم شوې — تا زما د آرمانونو شمعې مړې کړې
زړه مې غواړې چې رشته درسره پرېږدم — ستا دلاسه مې دښمن سره رشتې شوې

راته ښکاري د دنیا بد نصیب زه شوم　　　　رنړا ورځې اوس په ما توري تیارې شوې
خیر دی چپ شه په دنیا کې هر یو غم شته
په ((امین)) باندې د غمونو جوړې هدیرې شوې

زما دشعرونو ټولګه چې غالباً د (۲۰) په شاوخوا کې شعرونه لري چې غزل ،څلوریځې، مصرې، بیت او ازاد نظمونه په کې رانغښتل شوي دي او هم دنورو شعرونو په لیکلو بوخت یم.

# سیداحمد (حریفال)



سید احمد ((حریفال)) د خان محمد زوی د لوګر ولایت د مرکز ولسوالۍ د زردګل حریفال آباد د کلي اوسیدونکی یم.
خپلې لومړنۍ او منځنۍ زده کړې مې په بېلابېلو ښوونځیو کې سرته رسولي او د دولسم ټولګي څخه فارغ شوی یم. د څلورو کلونو راهیسې مې په شعر لیکلو پیل کړی چې همدا راز د لنډې کیسو او داستانونو لیکلو ته مې هم مخه کړېده تر څو هغه هم تیار او د چاپ وړ شي.

د کلام بېلګه:

دلته اوس راج د زورورو دی مونږ څه نه وایو
مونږ به د وخت په تقاضا کې خپل جانان ته رسو
مونږ اوس کم وس یو د مظلومو په کتار کې ولاړ
د پاک څښتن په فیصله کې به لوړ شان ته رسو
مونږ که هر څو یوځورېدلي نا امیده نه یو
ښه امیدوار یو چې به خپل عهدو پیمان ته رسو
قول مې کړی د اوله چې پر شا به نه ځو
په پاک اسلام به سر بایلو و ټول جهان ته رسو
د چا وشتو ته څه د طمعې لپوالتیا نه لرو
د پاک سبحان نه مدد غواړو و آسمان ته رسو
د زورورو راج که وي مونږ یې پروا نه لرو
په کرامت به کرار درومو خپل آرمان ته رسو
څه چې هدف زمونږ په زړه وي هغه بیا هم نه ځي
وخت ته به ګورو د بهار ښکلي زمان ته رسو
زه سید احمد درته خبرې په امید کومه
په پاکه مینه عقیده کې به خوبان ته رسو

د شعرونو دوه ټولګې لرم خو تراوسه مې کوم ځانګړی نوم نه دی ورکړی خو دچاپ لپاره تیار دي چې تراوسه چاپ شوي نه دي که دچاپېدو زمینه برابره شي غواړم چې چاپ کړم .

## شاه جهان (ساګر)



زه شاه جهان «ساګر» د عجب ګل ماهير زوی په کال ۱۹۸۷ ميلادي کې د پاکستان په کاهي کيمپ کې دې دنيا ته سترګې پرانيستي دي. چې اصلي هستوګنځی مې د لوګر ولايت د محمدآغې ولسوالۍ د قلعه نو ميرزاخيلو کلی دی.
د شعرونو دنيا ته مې يو څه موده مخکې مخ راړولی چې مينه مې هم ورسره زياته شوې او په ۲۰۰۵ ميلادي کال کې مې په ليکلو پيل وکړ چې تراوسه مې د (۵۰۰) ټوټو شعرونو په ليکلو بريالی شوی يم چې تر اوسه يې چاپ شوي نه دي. هيله لرم چې په راتلونکي کې د چاپ په بڼه د خلکو مخې ته کېږدم.

د کلام بېلګې:

سترګې رانه مه وباسه ما خو تش کتلي دي
خپله ګناه ياده کړه چې تا راته خندلي دي
دغه سره داغونه په لمن مې ګواهي کوي
ټوله شپه مې وينې په ګرېوان کې څڅېدلي دي
لږ ساعت نژدې جهان ته غلی غلی راغلمه
خلکو مې ګلونه په کفن باندې شيندلي دي
دا ظلم ستم، جور و جفا چې دې ورياده شوه
وايي چې ساګر په ځنکدن کې هم ژړلې دي

ځومره به ښه وای چې پيدا نه وی
يا مې زړګی مين پر تا نه وی
په يو خندا باندې مې زړه وتښتي
يا جادوګره ستا خندا نه وی
چې مې ليدلي دې ستا سترګې نه وای
اوس به مې سترګې په ژړا نه وی
چې د زړه خال يې يار ته وويل خلکه
اوس به ساګر غريب رسوا نه وی

# عبدالرحمان

عبدالرحمان د صوفي جمعه دين زوی د غلام نقشبند لمسی په ختېه حسين خيل د لوګر ولايت د محمدآغې ولسوالۍ اوسيدونکی يم چې په ۱۳۲۱ هـ ل کال کې مې زوکړه شويده.

په ۱۳۳۱ هـ ل کال کې مې په خصوصي زده کړو پيل وکړ چې تر صرف اونحوې پورې مې ديني زده کړه وکړه خو د ځينو اقتصادي ستونزو له کبله مې و نه شوای کړی چې پاتې زده کړو ته دوام ورکړم. په ۱۳۴۱ هـ ل کال کې د ملي دفاع په وزارت کې په رسمي دنده مقرر شوم، چې په ۱۳۷۰ هـ ل کال کې تقاعد او اوس کومه رسمي دنده نه لرم.

د کلام بېلګه :

سترګو ته دا وايه چې سيلونه ټولوه
او زړه ته داسې وايه چې فکرونه ټولوه
عاشقه ته داسې وايه ولې نه مرې له دې غمه
صنم ته داسې وايه چې نازونه ټولوه
بلبل ته داسې وايه چې نارې وهه تکړه شه
مليار ته داسې وايه چې ګکونه ټولوه
بدن ته داسې وايه چې چا سوری کړلې په غشو
جيګر ته داسې وايه چې زخمونه ټولوه
ساقي ته داسې وايه چې نن ډکې پيمانې که
شاعر ته داسې وايه خمارونه ټولوه
زاهد ته داسې وايه چې له زړه نه طواف وکړه
عابد ته داسې وايه ثوابونه ټولوه
هجران ته داسې وايه چې لمبې که پرما بلې
مين ته داسې وايه چې اورونه ټولوه
سپين مخ ته داسې وايه چې چا رنګ د ګلاب درکه
عطار ته داسې وايه چې عطرونه ټولوه
ګرېوان ته داسې وايه ولې لوند يې له ژړا نه
جانان ته داسې وايه چې آزارونه ټولوه
پتنګ ته داسې وايه چې ځان وسيځه په شمعې
ډيوې ته داسې وايه چې داغونه ټولوه
عبدالرحمان رحيل ته وايه چې دا ته ولې بيمار يې
زما زړه ته داسې وايه چې دردونه ټولوه

زما شعرونو په مناجات، نعت، عشقي، انتقادي، حماسي، وطني او ټولنيزو برخو باندې څرخي.
۱- دوه ټولګه : چې ( ۱۴۷۰ ) شعرونه مې په کې رانغښتي دي.
يوه بله ټولګه چې له ( ۱۸۷ ) شعرونو څخه رغېدلې ده چې همدا راز يوه ټولګه چې په دري ژبه ليکل شوي او ( ۱۲۳ ) شعرونو څخه مشتمل دی. يوه بله ټولګه چې د چاپ لپاره تيار ده او له ( ۱۹۰ ) شعرونو په کې ځای شويدي ، د چاپېدو په لټه کې يم.

# عبدالرحمان (احساس حبیب زوی)




عبدالرحمان (احساس حبیب زوی) د لوګر ولایت د محمدآغې ولسوالۍ د احمدزیو کلي اوسیدونکی یم.
پر ۱۳۶۵ هجري لمریز کال کې مې زوکړه شوې ده. لومړنۍ او منځنۍ زده کړې مې د پېښور په حضرت قیس بن سعد لیسې کې بشپړې کړې او پر ۱۳۸۲ هجري لمریز کال کې د محمدآغې د لیسې د دولسم ټولګي د بریلیک له اخیستلو وروسته د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي ته بریالی شوم. اوسمهال د همدې پوهنځۍ د پښتوڅانګې د دریم ټولګي محصل یم.

د کلام نمونه:

مناجات - د حمید مومند په پله

الهي د محبت سوزو گداز را
په دا اور کې د سهي سمندر ساز را
چې په آه مې تمام جهان سودمن شي
حنجره کې مې بلال غوندې آواز را
د دنیا کارونه واړه بې فایدې دي
په عقبا کې شمله راته ممتاز را
چې د مینې انتها مې حقیقت شي
ابتدا کې راته مینه د مجاز را
څومره خوند لري ستا مینه پاکه ربه
تل مې زړه انګړ ستا مینې لره باز را
څه ښایست دې پیدا کړی دې دنیا کې
خدایه ! تل مې ښایستو لره نیاز را
چې زما د خوږې مینې سپکاوی کا
دغه لاس مې ګرېوان کې د غماز را
چې الوت وکړم د شعر په دنګو غرونو
دغو غرونو کې وزرې لکه باز را
که احساس مې د پښتون حمید په پله ځي
په دا لاره کې یو ښکلی شان آغاز را

چاپ او ناچاپ آثار

۱- نرۍ، نرۍ باران دی. (چاپ) د کوچنیانو لپاره فولکلوري سندرې او لوبې دي

# فهیم الله (لودین)




زما نوم فهیم الله لودین د پلارنوم مې الحاج محمد شریف لودین دی چې په ۱۳۶۷ هجري لمریز کال کې د لوګر ولایت د پل عالم ولسوالۍ د میرزا عبدالرشید په کلي کې وزېږېدم او اوس د کلنګار په جهادي لیسه کې د دولسم ټولګي زده کوونکی یم. دوه کاله کېږي چې لنډې کیسې لیکم او شپږ میاشتې مخکې مې په شعر لیکلو پیل کړیدی.

د کلام بېلګه :
په دې ګلشن کې د چا ظلم او ستم نه منم
په دغه کور، کلي وطن کې ویر او غم نه منم
دا د احمد محمود میرویس کور دی میراث راپاتې

په دې جونګړه کې د هر پردي قدم نه منم
دا چې تاریخ مې تل زرین دی غیرتي افغان یم
د بې ننګی پېغور په کرښه د قلم نه منم
زه یم باغوان په دغه بڼ کې د ګلانو په سر
د بې غیرتو نامردی ټوپک او بم نه منم
چې مې په تش لاس وشړل محکم انګلیسان
په مخ وتلي ظالمان روس او پرچم نه منم
ته خو د مور په شان پر ما حق لرې ای وطنه!
دا ستا پوړنۍ په ګولۍ کړم، کړم نه منم
ماچې همیش دښمن نسکور کړ خمیده وې راته
لودین همیش وایي غلیم ته به سر خم نه منم

شعرونه مې تقریباً شپېتو ته رسیدلي چې د چاپ د نه تیاري له کبله مې نوم هم نه دې ور ټاکلی. د لندو کیسو د لیکلو لړۍ مې لاروانه ده په نږدې راتلونکي کې به چاپ ته تیار شي. غواړم چې د دواړو ټولګو له تیارېدو وروسته نمونه ورته غوره او چاپ کړم.

# مولوي حبيب الرحمان (حساس)




مولوي حبیب الرحمان ((حساس))، احمدزی، کوچی د میاورالدین زوی په ۱۹۷۹ میلادي کال کې د لوگر ولایت، محمدآغې ولسوالۍ د آبپیران په کلي کې زېږېدلی یم.

په ۱۹۹۲ میلادي کال کې د یو پاکستاني ښوونځی له دولسم ټولگي څخه فارغ شوم چې بیا مې د پلار په غوښتنه اسلامي زده کړو ته مخه کړه چې د ۱۹۹۲ میلادي کال د مې میاشتې څخه تر ۲۰۰۴ میلادي کال پورې اسلامي زده کړې پای ته ورسولې او دستاربندي مې د صدر په دارالعلوم کې وکړه. د یادونې وړ ده چې په (۷۰۰) طالبانو (زده کوونکو) کې یوازینی افغان وم چې دریم مقام مې ترلاسه کړ. په انگلیسي او اردو ژبو باندې روانې خبرې کوم او د کمپیوټر له اټلس پروگرامونو سره په کاري توگې سره بلدتیا لرم.

په ۲۰۰۵ میلادي کال کې له خیبر ټلویزون سره د نده ه ترسره کړې ده او اوس د لوګر ولایت د محمدآغې ولسوالۍ د پل کندهاري مسجد خطیب او د H.E.I.T اداري ډایرکټر مقرر شوی یم.

په اردو ژبه مې هم شعرونه ویلي چې په اردو ژبه کې یوه شعري ټولګه د ( دریا آمو سی دریا عباس تک ) په نوم لرم.

د کلام نمونې:

تاته به ټول صفا صفا ولیکم — د زړه حالونه به اشنا ولیکم
خندا مې نشته ټول غمونه دي نن — د خط عنوان به په ژړا ولیکم
د کور او کلي نه بېزار یمه زه — د هجر حال به په صحرا ولیکم
مینه به وښیمه خلکو ته زه — کتاب د مینې په په تا ولیکم
که دې پوښتنه زما وکړه په ژوند — ستا په تاریخ کې به وفا ولیکم
حساس پروت په ځنکدن کې دی اوس
د مرګ خبر به یې درته بیا ولیکم

په خیال کې نن د زلفو په ټالونو زنګېدم
بورا غوندې په څوکو د ګلونو زنګېدم
زما سرکشي ګوره چې د خیال له بلندۍ نه
شغله لکه د لمر په سر د غرونو زنګېدم
نور هېڅ نه وه اثر وه د ساقي د مستو سترګو
لاغوړپ مې کړی نه وه د جامونو زنګېدم
زاهده ما لږ پوه کړه ما یو خوب بېګا لیدلی
زه عشق ابراهیم وم په اورونو زنګېدم
حساسه ښکلی خوب وه د اوربل د سیوري لاندې

مجنون وم د لیلا په مړوندونو زنګېدم

یو نوی کتاب مې د ( رنګین غزل، غمګین ماښام ) په نوم انشاء الله په ډېر نژدې وخت کې چاپ کېدونکی دی. هیله کوم چې هېڅ غزل مې د مدني ټولنې څخه علاوه بل څوک چاپ نه کړي.

# میرعجب خان (شیرانی)




نوم مې میرعجب خان شیرانی د پلار نوم مې حاجي حضرت خان شیرانی دی. په کال ۱۳۶۵ هـ ل کې د پاکستان په کوټه کې زېږېدلی یم او د جهادي لیسي نه په کال ۱۳۸۴ هجري لمریز کې له دولسم ټولګي نه فارغ شوی یم او اوس د پکتیا ولایت په پوهنتون کې خپلې لوړې زده کړې سرته رسوم. او دوه کاله کېږي چې په شعر ویلو مې پیل کړی دی.

د کلام بېلګې:

ای چې ویشتل کوي په تورو سترګو
دا چې وژل کوي په تورو سترګو

زما زړګی چې دې زخمي زخمي کړو
داسې کتل کوي په تورو سترګو
زه کباب شوی ستا په مینې یمه
چې وریتول کوي په تورو سترګو
زه عجب یم عاشق دا ستا د حسن
چې قتلول کوي په تورو سترګو

د (۷۰) په شاوخوا کې مې شعرونه لیکلي خو لامې د کتاب په بڼه نه دي خپاره کړي، که په راتلونکی کې ماته زمینه برابره شوه نو د کتاب په بڼه به یې خپاره کړم.

# مجيب الرحمان ( مخلص )




زما نوم مجيب الرحمان (( مخلص )) د حاجي اميرگل زوی په قوم مسعود د لوگر ولايت د محمدآغې ولسوالۍ اوسيدونکی يم او په ( ۱۹۸۷ م ) کال د جنوبي وزيرستان د حصاره په کلي کې زېږېدلی يم او لومړنۍ زده کړې مې همغلته د مهاجرو په کيمپ کې سرته رسولي دي. اوس د لوگر ولايت د محمدآغې د عالي ليسې په لسم ټولگي کې په زده کړه بوخت يم. هېواد ته په راتلو سره مې په شعر ويلو پيل وکړ او مينه مې ورسره زياته شوي ده .

د کلام بېلگې :

## د وطن لخوا افغان ته خطاب

ای افغانه مهربان شه پاخه پاخه
ته زما د زړه درمان شه پاخه پاخه
لږ مې یاد کړه لږ مې واخله له غمونو
خوارو زړونو ته احسان شه پاخه پاخه
لږ راوېښ شه لږ مې پورته کړه له کندو
ته مې روح ته مې وجدان شه پاخه پاخه
غم ښادي مې ټولو خلکو ته بیان کړه
ته نطاق ته مې ویاند شه پاخه پاخه
لږ زما مینه په زړه کې راپیدا کړه
زه لیلا ته مې جانان شه پاخه پاخه
ای ( مخلصه ) د نفاق اورونه مړه کړه
اتحاد په لور روان شه پاخه پاخه

## څلوریځې

سپین رخسار سره دې لبان نازک نازک
کاږه باڼه، تور دې چشمان نازک نازک
نرۍ وریځې د لړم غوندې کږې دي
تور وېښته دې ښاماران نازک نازک
زه دې هسې د هجران په لمبو وسوم
دستا غم زما ګرېوان نازک نازک
(مخلص ) ګوښې د بېلتون په غونډۍ ناست دی
جوړ د اوښکو پرې باران نازک نازک

زما د شعرونو مجموعه له سلو (۱۰۰) څخه زیاته ده او غواړم چې خپلو شعرونو ته دوام ورکړم او له دې لارې خپل وطن ته خدمت وکړم. یوازینې هیله مې داده چې په راتلونکي کې یو ښه شاعر شم او خپلو هیوادوالو ته ښه شعري ټولګه وړاندې کړم.

# احمد ولي ( یوسفزی)

احمد ولي (( یوسفزی )) د محمداجان زوی د کابل ولایت د سروبي ولسوالی اوسیدونکی چې په ۱۳۶۱ هـ لمریز کال په کابل کې مې دې نړی ته سترګې پرانیستې.
لومړنی زده کړې مې په کابل کې د سیدنورمحمدشاه مینې په ښوونځي کې کړي دي منځنی زده کړې مې په پېښور کې او په ۱۳۸۲ هـ لمریز کال کې په پېښور کې مې د ابي ایوب انصار له عالي لیسې څخه د دولسم ټولګي د فراغت سند ترلاسه کړ.
د لیسې له فراغت سره سم مې په پېښور کې د هجرت په منځني ښوونځي کې معلمي پیل کړه چې یو کال یې دوام وکړ. د همدغې معلمۍ په اخرو شیبو کې د یو سفر لپاره روسې ته لاړم.
د ۱۳۸۴ هـ لمریز کال په اخرو شیبو کې له روسیې څخه بېرته راوګرځېدم او دهېواد دننه مې د ژورنالیزم په ځینو ورکشاپونو کې ګډون وکړ. اوس مهال د پرخې او پسرلي مجلې په کابل کې استازی او د افغانستان په ملي راډیو ټلویزون کې د ژورنالیست په توګه دنده ترسره کوم.

د کلام بېلګې:

غزل

موږه خو خپل خمار په بنګ ماتوو
د میو زور یې هم تر څنګ ماتوو
دا مغلي خیالونه بېرته ویسه
داسې وګړي موږ په جنګ ماتوو
خیر که دې اوس پر موږ یرغل راوړی
تا هم د تېر تاریخ په رنګ ماتوو

زمونږ د کلتور او د مېړانې ننبه
چې په یوه سر لوی ګړنګ ماتوو
اوس که نظر کې د رقیب نه ورځو
که سره یو شو بیا اورنګ ماتوو

۱۳/۱۰/۱۳۸۴ کابل

## غزل

ستا حسن بللی یم
ستا غرور شړلی یم
بیا به کوم دستور کوې
بیا درته راغلی یم
ډېرو ته یم سخت تمام
ډېرو ته ښاغلی یم
ژوند یم چا سینګار کړمه
چا په یار بایللی یم
ګل یم ژوند به ښکلی کړم
چا که زه کرلی یم
چا د ازغو پېښو ته دل
چا سر کې ټمبلی یم
ډېرو ته یم سخت تمام
ښکلو ته بیا غلی یم

۱۱/۳/۱۳۸۵ کابل

## دوه بیته

ښکلا ښکلا د ګل پر پاڼو شبنم
وې وور لیمو باندې مماڼو شبنم
لکه د ګل د مینې زړه نه لري
کنه وربېږي هم پر کاڼو شبنم

۱۴/۲/۱۳۸۵ پېښور

چاپ شوي آثار نه لرم او ناچاپ آثار مې دادي:

۱- يوه شعري ټولګه

۲- د لنډو کيسو ژباړې



# بخت میر وزیري




زه بخت میر وزیري د پلار نوم ذالمیرخان په ۱۳۳۲ هـ ل کال پـه کندز ولایت کې زېږېدلی یم، لومړنۍ زده کړې مې تر دولسم ټولګي پورې په خوشالخان لیسه کې ترسره کړیدي، لوړې زده کړې مې د ماسترۍ تر کچې پورې په کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پـوهنځی پـه پښتـو څانګـه کې ترسره کړیدي.

پـه ۱۳۶۲ هـ ل کـال کې د ژبـو او ادبیـاتو پـوهنځی پـه پښتـو څانګـه کې د استادۍ پـه دنـده وګمارل شوم او تر ننه پورې خپلې دغې دندې تـه دوام ورکـوم. بایـد یادونـه وکـړم چې د خپلې دندې د پیل نه تر نن ورځې پورې په کابل ښار کې د خپلې کورنۍ سره اوسېږم، پټه دې پاتې نه وي چې زما اصلي استوګنځی د پکتیکا ولایت د برمل ولسوالي (شمالي وزیرستان) ده.

څنګه چې ما زیاتره علمي کارونه کړي نو کومه داسې لنډه لیکنه نه لرم چې دلته یې راوړم.

د لیکوال آثار:

۱- د لیسانس د دورې مونوگراف. (په وزیرستان کې د میشتو قومونو پېژند گلوي)

۲- د ماسترۍ د دورې د دفاع تېزس: (د وزیرۍ لهجې پرتلنه د معیاري پښتو سره)

۳- د پوهنملۍ د علمي رتبې ته د ترفیع لپاره علمي اثر: (د میرزاخان بارکزي په دېوان کې تشبې او هغې ډولونه)

۴- د پښتو ژبې د تدریس لپاره (په مختلفو پوهنځیو کې گڼ چپترونه).

# میرمن ثمر



نوم مې ثمر د پلار نوم مې محمد اسلم او د کندهار ولایت په مرکز کې زېږېدلې یم. له لومړي ټولګي څخه بیا تر دولسم ټولګي پورې د کندهار ولایت په زرغونې لیسه کې زده کړې کړېدي او په عالي درجه ترې بریالۍ شوې یم.

وروسته بیا د کندهار ولایت د عالي دارالمعلمین د څوارلسم ټولګي څخه د پښتو او انګلیسي له څانګو څخه فارغه او دعینو په لیسه کې د ښوونکې په توګه وټاکل شوم. اوس په کابل ولایت کې د ابوالقاسم فردوسي په لیسه کې د فوق رتبې ښوونکې سپېڅلې دنده ترسره کوم. په دې بهیر کې د ښوونکې تر څنګ د سرښوونکې دنده هم ترسره کړېده.

د څلورو کمیټو د مسؤلیت سرېبره په ځینو کورسونو او سیمنارونو کې هم ګډون کړی دی. د بېلګې په توګه:

۱- د سیاسي علومو پنځه میاشتنی کورس.
۲- نفوس شمېرنې، د بشري حقوقو او مدني حقوق درې میاشتنې کورسونه.
۳- نظامي کورس.

څلور سمیستره د انګلیسي کورس هم ویلی چې ور سره د کمپیوټرپه څو پروګرامونو باندې هم برلاسې یم.

د کلام بېلګې:

## یار ته داد

مایوسه نه شې ستا دپاره زولنې قبلوم
رقیب دلاسه سختې سختې شکنجې قبلوم
چې په لوړ دار مې ځړوي ستامحبت کې یاره
پېښمانه نه یم د مرګي دا غرغرې قبلوم
چې دغه نن مې یار خفه شو او له مانه لاړی
ورځ تر قیامته د هغه ګیلې شکوې قبلوم
چې کله کله ستا احوال وما ته ورسوي
زه د هغه رویبار نازونه او نخرې قبلوم
که ستا دمینې سمندر ګرداب کې ډوبه شومه
پروا مې نشته زه (ثمره) دا غوټې قبلوم

## د وصلت شپه

پر سینه مې د خپل یار وکړه خوبونه
ځکه ورک مې شوه د ټول وجود دردونه
تر سهار مې ناقرار زړګی آرام ؤ
نه مې غم ؤ نه مې رنج نهِ مې دردونه

خدای راکړي د وصال شپه تر سهاره
نه فریاد مې خوت د خولې او نه آهونه
د ماشوم غونډې د ناز په خوب ویده وم
آه .. یو دم راباندې راغله طوفانونه
زه یې یو خوا ته گوزار کړم دې بل خواته
بیا مې نه ولیده ډېر تېر سوه کلونه
هغه شپه دې زما په عمر حسابېږي
نور روزگار راباندې وکړله ظلمونه
اوس د هغې ښکلې شپې په طمع ناسته
د راتلو په انتظار یې کړم فکرونه

د لیکوالې او شاعرې آثار:

له بده مرغه تراوسه لاپه دې نه یم بریالۍ شوې چې د خپلو شعرونو مجموعه چاپ کړم، خو په راتلونکي کې یې د چاپ کولو ټینگ هوډ لرم. اوس مهال درې شعرې مجموعې لرم

ځینې شعرونه مې د ورځپاڼو، مجلو، د افغانستان او د آزادۍ په راډیو کې خپاره شوي او ځینې نور یې په نورو ډله ایزو رسنیو کې له چاپه راوتلي دي.
په نثر کې مې د گوتو په شمار لیکنې کړېدي او د دې ترڅنگ څو لنډۍ دري شعرونه مې هم په خپله شعري جونگړه کې ځای ورکړی دی.

# دیدار ( یاغي)



نوم مې دیدار (( یاغي )) دی چې له نن تقریباً ( ۲۰ ) کاله وړاندې په کوزه پښتونخوا کې زیږېدلی یم، پلرنی ټاټوبی مې د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ د اوزبین نومې سیمه ده. زده کړې مې په کوزه پښتونخوا کې کړي دي او د دولسم ټولګي د فراغت سند مې د دعوت له عالي لیسې څخه ترلاسه کړی دی . د ۱۳۸۳ هـ لمریز کال د کانکور په آزموینه کې مې ګډون وکړ چې د ساه پوهنې پوهنځی ته بریالی شوم، درې څلور سمستره مې پوهنتون ووایه خو نور د وخت او حالاتو پرېکړه داسې وه چې پوهنتون دې پرېږدم.

له شاعرۍ سره مې له ماشومتوبه مینه وه، څومره چې مې یادیږي نو دشعر لیکلو هڅه به مې کوله.

لومړی ما هم د نصیحتونو شعرونه لیکل خو هغه وخت مې د شعر ژبې او دنیا بدلون ومونند چې د تکړ استاد له خولې نه مې د غني خان بابا شعر واورید.
هغه وخت مې ژوند مینه، شعرښکلا، خیال، فلسفه، جنون، ځان، جانان او جهان وپېژند چې د بابا شاعري نوی نظر، نوی سر او په کې نوي خیالونه راکړل.

د کلام نمونه:

شمع

تا خپل ځان خاورې ایرې کړ
تا ساقي له رڼا ورکړه
نن دې بیا په دې محفل کې
تماشه د ګناه وکړه

شمعې زه هم ستا په شان یم
لمبې واخلمه نور خور کړم
شمعې زه لکه هنداره
په خپل رنګ ښکاره انځور کړم
زه به ستا په رنګي ورک شم
زه سپین سپین کړمه تور تور کړم
ته به ځان له څه شی شته کړي
زه ځان له مینې پور کړ م
ساقي نذر مېخانه کړه
شېخه پورته کړه جامونه
تا به څوک دلته رسوا کړي
شمعه نه وایي حالونه

د ليکوال آثار:

۱- د شوګيرو چغار (شعري ټولګه) چاپ

۲- د شګو محل (د غني خان بابا د کلام غورچاڼ) چاپ

۳- د فکر پلوشې (شعري ټولګه) چاپ ته چمتو

۴- غني چې مست شي (د غني خان بابا په اړه)

۵- يوه بله شعري ټولګه چې لاتراوسه نه ده بشپړ شوې او نه مې لانوم ورکړی دی.

# وسیع الله (سیار)




نوم مې وسیع الله او تخلص مې سیار دی دخدای ښښلي امین الله خان زوی او د مرحوم شاه جهان لمسی یم. په ۱۳۲۹ هـ لمریز کال د ننګرهار د کامې ولسوالۍ د اخندکلي په یوه متدینه، روڼ اندې، علمي کورنۍ کې زېږېدلی یم.

لومړنۍ زده کړې مې د اخندکلي په لومړني ښوونځي کې کړي او بیا د مرادعلي لیسې نه فارغ شوم. په ۱۳۴۹ هـ لمریز کال کې د لوړو زده کړو د تحصیل لپاره د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی ته راغلم او په ۱۳۵۳ هـ لمریز کال ترې د لوی خدای ج په فضل په اعلی درجه فارغ او د مجاز دیپلوم مې تر ګوتو کړ. په ۱۹۸۴ - ۱۹۸۵ میلادي کلونو کې د پېښور یونیورستۍ «نړیوال پوهنتون» نه مې د پښتو د ادبي علومو په څانګه کې د ماسټرۍ ډیګري ترلاسه کړېده.

دخپل وطن نه ليرې د هجرت په ټاټوبي کې مې قلم له لاسه نه دی پرېوتی او د هنر او ادب ځولۍ مې ښه ټينگه نيولې ده په دې دومره عمر او کلونو کې مې سره له دې چې په مختلفو ځايونو او دفترونو کې دنده سرته رسولې ده خو د پښتو د ژبې او ادب درناوی مې د ځان فرض او ښه انډيوال گڼلی ؤ. که زما مورنۍ ژبه پښتو ده خو ما ورسره د دري ژبې او ادب دواړه په ښه شوق او ذوق زده کړې د پښتو او دري ژبې سره يو شان مينه لرم او په دې ويارم چې د دواړو ژبو ځولۍ ته مې د خپل کم فکر مگر د پراخه نظر په رڼا کې د نثر او يا د نظم نيمگړې او ناقصې ادبي ټوټې ډالۍ کړيدي او ډالۍ به يې کړم انشاءالله. زه په دې پوره باور او ايمان لرم چې د وحدت په بڼ او باغچه کې ډول ډول گلان موجود وي او دا ټول د يو مهربان ماليار لخوا روزل کېږي، ساتل کېږي او بالاخره پالل کېږي، په مجموع کې د ټولو گلونو نوم «گل» دی خو که نومونه يې دريدي، ريحان، نرگس، مرسل او گلاب په نامه نومول شوي د پېژندلو لپاره دي نه د بل غرض لپاره او ددې ټولو ټاټوبی همدغه باغ او بڼ دی او يو ماليار لري، که ځانگې جلا جلا او بېلې دي خو ونه يوه ده او د همدې ونې د تنې نه هرې ځانگې او هرې پاڼې ته اوبه رسېږي په ځانگو کې فرق او توپير لټول او راپيداکول لکه په (ع) کې (غ) لټول دناپوهو او خودغرضو د ملوثو افکارو زېږنده ده او بس.

يادونه: اگر که زما زوکړه او يا د دولسم ټولگي پورې زما ښوونه په کامه کې ترسره شويده مگر زما نور باقي عمر تر ننه پورې د کابل ښکلي او تاريخي ښار په دننه کې په شاه شهيد دويم سرک کې او فعلاً زما کور په چهلستون کې او دهمدې چهلستون اوسيدونکی يم.

د کلام بېلگې:

لويه خدايه په خپل رحم خپل ديدار را
چې مشغول مې کړې په ذکر ښه افکار را
زه بنده که گناهگار يم، ته غفار يې
توان توفيق د بنده گۍ او استغفار را
چې درغلې نيغه لار وي، ستا په لورې

قدمونه ډېر مضبوط په دغه لار را
د بنده له بنده ګیه امان غواړم
ته مې خدای په زړه تصدیق، په خوله اقرار را
ماته مینه محبت په حقیقت را
د اخلاص نه ډک توفیق د عبادت را
چې د زړه سترګې روښانه پرې زما شي
رون چراغ د علم پوهې، معرفت را
نرم زړه لکه د مومو در نه غواړم
له غریبو سره زړه کې محبت را
چې په ناسته مې خوشحاله هر محفل شي
د سپرلي په شان خوشبویه طراوت را
ګران هېواد ته مې د ظلم نه نجات را
غمځپلو ته مې نور د زړه نشاط را
محبت زموږ په زړنو کې پیدا کړه
چې په مینه نه مړېږو، هغه سات را
چې لرغون وطن مې بیا، یو ځل ودان شي
په کرم سره د خپل رحم زکات را
ټول ملت مې کړې لېوال علم و ادب ته
له هر چا نه پرمخ تللي ادبیات را
اتحاد، خوږه وروري د زړه په مینه
را پیدا زموږ په زړو کې حسنات را

بله بېلګه:
هر دښمن مو د هېواد، په زړه غلبیل کړې
د همه او طانو دا د سر اکلیل کړې

اراسته مو د اسلام په روحیه کړي
شیطاني چارې، له موږ ځني رحیل کړي
د وطن دشتې مې ټولې کړې آبادې
ټول سیندونه د هېواد مې سلسبیل کړي
چې نوکر د بیگانه، امل ته شا کړي
د سیار له ځنگه ورک داسې سفیل کړي

بله بېلگه :
د بوسو لاندې چې اوبه بیایي، نقص د ځان ولې کړي
ته هم انسان یې، چاپلوسي د بل انسان ولې کړې
د حمام لنگ غوندې چاپلوسه، له هرچا نه تاو یې
دا پټ کارونه په پرده کې، د شیطان ولې کړي
اخر به لوڅ رسوا رسوا شي بې ضمیر انسانه
دومره ریشخندي په خپل ځان او په ایمان ولې کړي
په درنو دروند، په سپکو سپک خوشحال خټک ویلي
نااهلو خلکو ته ( سیاره ) پند بیان ولې کړې

دلوی خدای په نامه

درنو لوستونکو د ادب مینه والو اوبیا خاصتاً د هنر او ادب د ډگر اتلانو ته به ډېر پیکه ښکاره شم چې ووایم چې : زه د نادیدوو غوندې نه یم چې یوه پانه شعر او یا نثر یې د کرتوب نه لامخکې هرې ورځپانې، مجلې، جریدې او یا هرې ادبي غونډې، مشاعرې او سیمینار ته سمدستي سپارلي وي او هغه هم په دې موخه چې شهرت تر لاسه کړي. زه د شهرت او خودنمایي او نامه لپاره شعرونه ، نثرونه او ادبي مضامین نه لیکم او نه به په راتلونکي کې دې مفکورې ته ځای ورکړم، بلکې زه دخپل ذاتي او فطري ادبي سلیقې له مخې له یوې خوا او دبلې خوا ته که خدای (ج) ته منظوره وي د خپلې مورنۍ ژبې خدمت د هنر او ادب په ښکلي

چاپیریال کې ترسره کړم. زه ډېر کم لیکل کوم خو د سوچ او دقت نه وروسته او دا مې هیله او هڅه وي چې زما اشعار دې داسې څوک ولولي او په هغه دې کره کتنه وکړي چې زه د هغه د پښنو گذاري او گرد پسې نه شم رسیدی نو بیا به زه په ډاډمن زړه خپل اشعار چاپ او د ادب مینه والو ته به یې په مینه ډالۍ کړم.

د لیکوال او شاعر آثار:

زه تراوسه چاپ شوي اثار او تالیفات نه لرم مگر اکثره څه چې ټول زما د تنبلۍ یا زما سره د وخت د نه درلودلو له کبله ناچاپ پراته دي او هغه په لاندې ډول په گوته کوم:

۱- د کدر د علمي رتبې لپاره (په پښتو ادب کې د مسجع نثر دپیدایښت او پایښت مسئله)

۲- د کدر د علمي پوهندوی رتبې لپاره (په پښتو ادب کې مرثیه د ۱۰۰۰ کلونو په اوږدو کې) یا په بل عبارت مرثیه د پښتو په ادب کې د پیل نه تر ننه پورې.

۳- د هجرت په دوره کې د تالیف او تدقیق په څانگه کې د څلورم، پنځم، شپږم او لسم ټولگیو ته د تاریخ، جغرافې کتابونه تالیف او ترجمه کړیدي. د پنځم ټولگي لپاره د تجوید کتاب په پښتو ترجمه کړی.

۴- د منځنۍ اسیا د مسلمانانو مبارزه د کمونیزم په مقابله کې د ډاکټرفضل رحیم مروت تالیف او ما ژباړلی دی.

۵- زما د اشعارو ټولگه چې نږدې یو زر بیتونو ته رسېږي او د شعرونو مختلف ادبي صنعتونو کې مې خپل ځان ازمایلی دی لکه: چاربیته، غزل، نیمکۍ، څلوریځې، مناجات، حمد او نعت، منقبت، طنز او مزاح، ترانه او نور شعرونه مې ټول په یوه لوري نه دي لیکلي بلکې، مختلفې خواوې لري لکه: انتقادي، اخلاقي، اصلاحي، اجتماعي او زیاته ونډه په کې د عشق او محبت ده. په دري ژبه کې زما شعرونه ۵۰ عنوانونو ته رسېږي.

۶- د نثر په برخه کې مې څو مقالې لیکلي لکه: د تصوف او عرفان، دخوشحال خان اجتماعي ژوند ته کتنه په رباعیاتو کې، او ځنې نورې ادبي ټوټې...



